


**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د پښتو ژبې د تدریس لارښود

## اتم ټولګی (دویمه ژبه)




د پښتو ژبې د تدریس لارښود - اتم ټولګی دویمه ژبه





د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د پښتو ژبې د تدریس لارښود

## اتم ټولگی

**(دویمه ژبه)**

د چاپ کال: ۱۳۹٦ هـ. ش.

## لیکوالان:

- د مؤلف مرستیاله فروزان خاموش
- د مؤلف مرستیال اقا محمد ګرندی
- د مؤلف مرستیال محمد عزیز تحریک
- د مؤلف مرستیال محمد عزیز حسین خېل

## علمي او مسلکي ایډیټ:

- محمد زرین انځور

## د ژبې ایډیټ:

- بریالی باجوړی

## دیني ،سیاسي او کلتوري کمیټه:

- ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- حبیب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې.
- محمد آصف کوچی

## د څارنې کمیټه:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

## طرح او ډیزاین:

صفت الله مومند او حمیدالله غفاري



## ملی سرود

دا وطن افغانستان دی    دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې    هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی    د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو    د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي    پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي    هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي    لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به    لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر    وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## د پوهنې د وزیر پیغام

## ګرانو استادانو او ښوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتوکېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنوسره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوې، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او ګټې ورپه برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درووند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او ټکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود د کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

دکتور اسدالله حنیف بلخي

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# د مطالبو فهرست

# ســـــــــــريزه

ښوونيز يا تعليمي نصاب څه شی دی؟ په دې اړه هرڅوک بېلا بېل نظرونه لري؛ څوک يې درسي مفردات ګڼي او څوک يې درسي کتاب بولي. د ښوونې اوروزنې پوهانو يې هم بېلا بېل تعريفونه کړي دي. ښوونيز يا تعليمي نصاب هغه لارښود دی چې د ښوونې او روزنې ټول فعاليتونه په کې شامل او تر لاسه کول يې هدف دی.

په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي هدفونه، د افغاني ټولنې د ارزښتونو او د علم او پوهې د هراړخيزې پراختيا په پام کې نيولو سره ښوونې او روزنې ته د يوې ټولنې د اړتياوو پر بنسټ ټاکل شوي دي. تعليمي نصاب تل د بدلون په حالت کې دی او د بشري ټولنې ورځنيو غوښتنو ته د ځواب ويلو په خاطر لا پسې غوړېږي او پراختيا مومي.

لاندې موضوعګانې په افغانستان کې د ښوونې او روزنې اساسي توکي دي:

## الف – اعتقادي او اخلاقي هدفونه

د زده کوونکو د عقيدتي او اخلاقي روحيې د پياوړي کولو لپاره لاندې ټکي په پام کې نيول شوي دي:

- د اسلام د سپېڅلي دين پر بنسټونو د ايمان او عقيدې پياوړي کول؛ د قران او د پيغمبر (ص) د سنتو د لارښوونو له مخې له افراط او تفريط پرته د اسلامي ليد پراختيا،
- د خدایﷻ پېژندلو په موخه د ځاني پېژندلو د روحيې رامنځته کول،
- پر نفس د باور او اخلاقي نيکو خويونو د رامنځته کولو د روحيې پياوړتيا،
- د نظم او دسپلين د روحيې رامنځته کول او قانوني ارزښتونو ته درناوی،
- د ښوونيزو، روزنيزو او ټولنيزو ارزښتونو په وړاندې د مسؤوليت د درک او پېژندلو د روحيې پياوړتيا.

## ب - علمي او تعليمي هدفونه

زده کوونکي د تعليمي بهيرونو په پايلې کې، چې د تعليمي نصاب او له تعليمي نصاب بهر نورو فعاليتونو له لارې سرته رسيږي، اساسي او بنسټيزه پوهه ترلاسه او خپلې لوړې فکري وړتياوې پراخوي. له دې امله لاندې علمي او تعليمي هدفونه په پام کې نيول شوي دي:

- د اورېدلو، خبرو کولو، لوستلو او ليکلو په څېر د زده کړې د وړتياوو ترلاسه کول او ځواکمنول؛ په رسمي او بهرنۍ ژبو کې د شمېر او حسن خط زده کړه،
- د زده کړې د وړتياوو تر لاسه کول، د زده کړې په بهير او له هغې څخه د ترلاسه شوو نتيجو په پېر کې د ځاني ارزونې په موخه د استعدادونو وده،
- په علمي او فرهنګي برخو کې د تفکر، مطالعې، څېړنې او نوښت پياوړتيا،
- د پوهنو، فنونو، معاصرې تکنالوژۍ او د اړتيا وړ فردي او ټولنيزو مهارتونو لاس ته راوړل،
- د فردي او ټولنيزو ستونزو د هوارولو په موخه د وړتياوو ترلاسه کول.

## ج – فرهنګي او هنري هدفونه

لاندې هدفونو ته د رسېدلو له لارې ټولنيز فرهنګ او هنر بډای او پراخېدای شي:

- د فرهنګ اوملي هنرونو (لاسي صنايعو، سوزن دوزۍ، ګنډې، اوبدلو، مهندسي، انځورګري، خطاطي، رسامي، موسيقي او د کورونو د ښکلي کولو) او سالمو نړيوالو هنرونو پېژندل او فرهنګي او تاريخي ميراثونو ته درناوی او د هغوی د ساتنې د روحيې پياوړتيا،
- د هنري او ښکلاييزو استعدادونو او ذوقونو پېژندنه، پالنه او لارښوونه،
- د افغانستان د تاريخ او فرهنګ، اسلامي تمدن او نورو هېوادونو د فرهنګ پېژندل،
- د افغاني ټولنې د منلو دودونو او فرهنګ وده او د ارزښتونو ساتنه،
- د يو کسيز او ډله ييزو فعاليتونو او تمرين له لارې د هنري مهارتونو پراختيا.

## د - مدني او ټولنيز هدفونه

د لاندې هدفونو ترلاسه کول به د يوې کورنۍ، کلي، سيمې، د ملي او نړيوالې ټولنې د يو غړي په توګه د زده کوونکو دريځ ته وده او پراختيا ورکړي:

- د ملي نواميسو د ساتنې او د برابرو حقونو او اسلامي اخلاقو پر بنسټ د کورنيو اړيکو د ټينګښت د روحيې پياوړتيا،
- د وروروګلوۍ، مرستې، سولې، ټولنيز عدالت، ملي او نړيوال پيوستون د روحيې پياوړتيا،
- د خيرغوښتنې، د اخلاقي فضايلو د ودې، له جګړې سره د ضديت او له نشه يي توکو سره د مبارزې د حس پياوړتيا،
- قانون ته د درناوۍ او د هغه د منښت، له قوم، جنس، سن، اقتصادي او ټولنيز دريځ او سياسي تړاو په پام کې له نيولو پرته د هرچا د قانوني حقونو د حمايت او ساتنې د روحيې پياوړتيا،
- په ديني، فرهنګي، ټولنيزو او اقتصادي فعاليتونو کې د ګډون د روحيې وده او پراختيا،
- په ټولنيزو اړيکو او پر فردي ګټو د ټولنيزو ګټو د غوره ګڼلو په لاره کې د تېرېدنې (عفوې) او سرښندنې د روحيې پياوړي کول،
- د نيوکو (انتقاد) او د نيوکو د منلو او د فکر په څرګندولو کې د زغم او نورو ته د درناوي د روحيې رامنځته کول،
- د افرادو شخصيت ته د درناوي، انساني کرامت او په ټولنيزو چارو کې د معاشرت د ادبونو د رعايتولو د روحيې وده او پراختيا، ... .

## هـ - اقتصادي هدفونه

ددې لپاره چې زده کوونکي د ټولنې په اقتصادي فعاليتونو کې د برياليو ګډون کوونکو په توګه راڅرګند شي، لاندې مهم اقتصادي هدفونه په پام کې نيول شوي دي:

- د ټولنې د اقتصادي ودې په ضرورت او له کورنيو سره د هغو د تړاو پېژندل،
- د کار په اهميت او ارزښت پوهېدل او په ګټورو دندو کې د ګډون د روحيې پياوړتيا،
- د سپما او قناعت او د اسراف او تجمل د مخنيوي د روحيې رامنځته کول،

- د هېواد د اقتصادي سرچینو پېژندل او له هغوی څخه د استخراج په سمو لارو چارو پوهیدل او د ملي ګټو، شتمنیو او پانګو د ساتلو د روحیې پیاوړتیا،
- د عرضې او تقاضا پر اړیکو د زده کوونکو د پوهې د کچې لوړول ... .

## و – روغتیایي هدفونه

د لاندې هدفونو په مرسته به د رغنده چاپیریال په پراختیا او د ژوند د سمو لارو چارو په اړه د زده کوونکو د پوهې کچه پراخه شي:

- د ځاني پاک ساتنې (حفظ الصحې) او د فردي او ټولنیزې روغتیا په اړه د رغنده ژوند په لارو چارو پوهیدل،
- د عمومي حفظ الصحې او د چاپیریال د پاک ساتنې د روحیې پراختیا،
- له ناروغیو څخه د ساتلو په موخه له روغتیایي پوهې څخه برخمن کېدل او د اساسي مهارتونو پیاوړي کول،
- د لارو چارو او شرایطو په رامنځته کولو د بدني او رواني روغتیا تامینول او د سالمو تفریحګانو لپاره د بدني روزنې او ورزش او د خړوبه چاپیریال چمتو کول،
- د ځمکنیوماینونو، وسلې کارونې، د نشه یي توکو د استعمال او د هوا د ککړوالي له خطرونو څخه د مخنیوي لپاره د پوهې رامنځته کول او د وړتیاوو کارول... .

# د پښتو ژبې د زده کړې د لوست کتابونه

د پښتو ژبې په نوو درسي کتابونو کې هر لوست له دریو برخو څخه جوړ شوی دی:

– د لوست سریزه یا ورودي برخه،
– د لوست متن یا اصلي برخه،
– د لوست د پیاوړتیا او تحکیم برخه

## لومړی، د لوست سریزه:

د لوست سریزه په عمومي توګه لوست ته د ننوتلو لاره پرانیزي. د لوست ارزښت په ګوته کوي او کله ناکله له تېر لوست سره د نوي لوست اړیکي ټینګوي او یو منطقي ارتباط تامینوي. کیدای شي دا برخه په یو، دوو پوښتنو پیل شي او یا په پای کې یوه نیمه پوښتنه راشي. زده کوونکي نومړو پوښتنو ته وار له واره ځوابونه نه وایي، بلکې هغه له ځان سره ساتي. دا پوښتنې زده کوونکو ته د لوست په اړه انګیزه ورکوي، د زده کوونکو فکر هڅوي، لوست ته زده کوونکي متوجه کوي او په دې توګه هغوی ځیر کیږي چې پوښتنه د لوست په کومه برخه کې ځوابیږي.

## دویم، د متن برخه:

دا د لوست اصلي برخه ده. په دې برخه کې د لوست پیغام نغښتل شوی. د زده کوونکو پوهه پراخیږي، د نوو کلمو زېرمه یې زیاتوي، نوې مفکوره تر لاسه کوي او په دې توګه د نوو لیکنو او متنونو د لیکلو ورتیا مومي او ژبني مهارتونه یې پیاوړي کیږي. د لوست همدا برخه ده چې د زده کوونکو پوهه، ورتیا (مهارت) او ذهنیت پیاوړی کوي او په سلوک یې مثبت بدلون راولي.

## دریم، د لوست د پیاوړتیا او تحکیم برخه:

په دې برخه کې د متن لنډیز، فعالیتونه او کورنۍ دنده راځي. د متن په لنډیز کې عموما د لوست مهمې برخې تکرایږي او زده کوونکو ته د لوست ارزښت په ګوته کوي. فعالیتونه د ښوونکو په لارښوونه پخپله د زده کوونکو له خوا ځوابیږي او ښوونکی له دې لارې د زده کوونکو د پوهې، ورتیا او ذهنیت د کچې په لوړلو کې مرسته کوي او په پای کې لوست ارزوي.

ښاغلی ښوونکی دې هڅه وکړي، د لوست پیل، که ممکن و، له تېر لوست، د تېر ټولګي له لوست یا بلې کومې اړوندې موضوع سره وتړي. په بېلابېلو پوښتنو او لارو چارو زده کوونکو ته د نوي لوست په اړه ذهنیت ورکړي. بیا د متن په لوستلو پیل وکړي. په ورو او څرګنده ژبه متن ولولي او د متن نوو کلمو ته د زده کوونکو پام واړوي. د لوست لنډیز په خپله ژبه زده کوونکو ته ووایي او د لوست پر څرګند پیغام زده کوونکي وپوهوي. د فعالیتونو په سرته رسولو کې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي او ټول زده کوونکي دې د لوست په فعالیتونو کې شریک کړي. هیڅ زده کوونکی دې له دې بهیر څخه نه بې برخې کیږي. د لوست په پای کې دې زده کوونکي وارزوي او ډاډ دې تر لاسه کړي چې د لوست پیغام زده کوونکو اخیستی وي او په پوهه، ورتیا او فکر کې یې مثبت بدلون راغلی وي.

پاتې دې نه وي چې هر لوست د یوې اوونۍ لپاره چمتو شوی دی. ښاغلي ښوونکي کولای شي، هر لوست د اوونۍ په ساعتونو وویشي او د ښه تدریس لپاره هره برخه پر زده کوونکو ښه تکرار کړي. د زیات تکرار او د هر زده کوونکي د فعالې ونډې اخیستلو په پایله کې زده کړه په زړه پورې سرته رسیږي.

د ښاغلو ښوونکو د تدریس خپلې تجربې د لوست په پرمخ وړلو کې ډېر مهم رول لري. ګران ښوونکي دې هڅه وکړي له خپلو تجربو څخه په ګټې اخیستنې د تدریس بهیر ګټور کړي.

## یادښت:

له مورنۍ ژبې پرته د پښتو لوست کتابونه ناپښتو سیمو ته هم لیکل شوي دي. د افغانستان د اساسي قانون د ۱٦ مادې له مخې پښتو او دري د افغانستان دوه رسمي ژبې دي. د افغانستان هر اوسیدونکی ښایي د خپلې مورنۍ ژبې ترڅنګ دا بله رسمي ژبه هم زده کړي. یو زده کوونکی باید له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته پردواړو ژبو وپوهیږي، افهام او تفهیم پرې وکړای شي او د امکان تر بریده پرې خپلې اړتیاوې پوره کړي. ددې موخو د تر لاسه کولو لپاره د دویمې ژبې په توګه د پښتو د لوست د کتابونو د تالیف په اړه له پوره غور او سوچ څخه کاراخیستل شوی. هڅه شوې هر لوست د زده کوونکو د عیني اړتیاوو پر بنسټ چمتو شي؛ ورځنۍ اړتیاوې، د جملو جوړښت او ساده ګي، د نوو کلمو کارول، د جملو

منطقي تسلسل او داسې نور په پام کې ونیول شي. که د پښتو دا کتابونه د ښاغلو ښوونکو له خوا په سمه او رغنده توګه تدریس شي، باور دی، چې له ښوونځي څخه تر فراغت وروسته به زده کوونکي وکړای شي خپلې ورځنۍ اړتیاوې له ستونزو پرته هوارې کړي.

ښایي یادونه وشي، چې په مورنۍ ژبه کې یو زده کوونکی خبرې کولای شي او په اورېدلو یې مفهوم تر لاسه کولای شي، خو یوازې لوستل او لیکل نشي کولای. په داسې حال کې چې له مورنۍ ژبې پرته خبرې کول، اورېدل، لوستل او لیکل، څلور واړه، د زده کړې له لارې ترسره کیږي. په دې توګه د دویمې ژبې په زده کړه کې تر هرڅه دمخه پر خبرو کولو او پر خبرو پوهېدلو (اورېدلو) ټینګار کیږي. لوستل او لیکل په دویم پړاو کې راځي.

د دویمې ژبې په توګه د پښتو لوست په کتابونو کې د لوست د متن په پرتله په فعالیتونو او تمرینونو زیات زور اچول شوی دی. درانه ښوونکي دې، دې ټکي ته پوره پام وکړي، چې د متن د منځپانګې (محتوی) له مخې زده کوونکي ډېر فعال وساتي، د ټولګي مخې ته یې راوغواړي او خبرې پرې وکړي، که څه هم په لومړي سرکې دا خبرې پوره معنا ورنه کړي په ورو ورو زده کوونکي له خبرو سره مینه پیدا کوي، خپلو نیمګړتیاوو ته پام کوي، ډاډمن کیږي او له ډاره پرته د نورو په وړاندې خبرې کوي او د نورو پر خبرو ځان پوهوي. ښوونکي ته سپارښتنه کیږي، تر ډېره بریده په ټولګي کې له زده کوونکو سره په پښتو خبرې وکړي او هغوی هم وهڅوي، چې د پښتو په درسي ساعت کې په پښتو وغږیږي. ښاغلي ښوونکي دې د یو لوست موضوع د اوونۍ په اوږدو کې بیا بیا تکرار کړي او ډاډ دې ترلاسه کړي، چې د زده کوونکو په خبرو کولو او سمو اورېدلو کې ښه والی راغلی دی. درانه ښوونکي دې د خپلو تدریسي تجربو له مخې له بېلا بېلو میتودونو او لاروچارو څخه ګټه واخلي او هڅه دې وکړي لوست د زده کوونکو له مینې سره برابر چمتو کړي. د ټولګي دننه د غونډو جوړول، تمثیل، د مقالو لیکل، د جرېدو جوړول او د ورځنیو اړتیاوو په اړه خبرې کول داسې فعالیتونه دي، چې زده کوونکي د ژبې زده کړې ته هڅوي او مرسته ورسره کوي.

د لوست په دې کتابونوکې د ورځنیو موضوعاتو په اړه یو لړ مرکې راغلي. ښوونکی دې دا مرکې په زده کوونکو سرته ورسوي. توپیر نه کوي، که مرکې ټکي په ټکي د کتاب له متن سره سمون ونه لري. درانه ښوونکي دې زیار وکاږي، ددې مرکو په څېر نورې په زړه پورې موضوعګانې پیدا او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي، چې په لېدو مرکو یې سرته ورسوي. دلته د ښوونکو مهارت، وړتیا، تجربه، مینه، مسؤولیت او نه ستړې کېدونکی کار خورا ډېر اغېزمن واقع کیږي.

د داسې یوې ورځې په هیله، چې د افغانستان ټول وګړي له ستونزو پرته د یو واحد ولس په توګه یو د بل په ژبه وپوهیږي او خپلې اړتیاوې پوره کړي.

د منځنۍ دورې د پښتو ژبې درسي کتابونه د افغانستان د تعلیمي نصاب د عمومي هدفونو پر بنسټ په دې موخه تالیف اوتدوین شوي دي چې زده کوونکي په ټولنیزو اړیکو کې د ژبې پر ارزښت، د معیاري ژبې پر پېژندنې او د ملي، دیني او فرهنګي ارزښتونو په پیاوړتیا کې د هغې په رول وپوهیږي. ښه او رغنده تدریس د زده کړې د عمومي پروګرام یوه برخه ده او ټاکلو موخو ته رسیدل اسانوي.

د ښوونکي لارښود ددې لپاره ليکل کيږي چې  د زده کړې د بهير علمي پلي کول اسانه کړي. له دې امله مولفين هڅه کوي ځاني ازمېښت او فعاليتونو ته د  سم او رغنده ځواب  ترڅنگ هرې برخې (ژب پېژندنې، گرامر، املا او انشاء) ته بشپړوونکي مطلبونه هم چمتو کړي.  ددې بهير له لارې د هېواد په گوټ گوټ کې د زده کوونکو تر منځ د يووالي او همغږۍ روحيه رامنځته او پياوړې کيږي. .

## اړتياوې:

د زده کړې د گټورو پايلو د تر لاسه کولو او د پښتو ژبې د لوست د عمومي او خصوصي موخو د رښتينولۍ لپاره بايد د تدريس پر مهال لاندې ټکو ته پام واړول شي:

- د زده کوونکو په ذهن کې د کتاب د بېلابېلو برخو د انسجام او پيوستون او د لوستونو د سمبالښت او عمومي مفهوم د څرگندولو د ميتود  لارې،
- د پښتو ژبې د زده کړې د لازمو او بنسټي توکو په ډلې کې د ژبې د مهارتونو (اورېدلو، خبرې کولو، لوستلو، ليکلو) پياوړتيا،
- تر پام لاندې موخو ته د رسېد په خاطر د تدريس لپاره د لارو چارو او مناسبو علمي بېلگو  کارول،
- د زده کړې د پروگرام  (فعال تدريس) د اړخونو او د زده کړې د محتوا د عملي کېدو لپاره د تمرينونو او فعاليتونو پر کارندې برخې ټينگار،
- د لوستونو د محتوا  ارزولو ته پام او د محتوا (د لوست طرح) د چمتو کولو له لارې د هر لوست د هدف  او د مناسب تدريس د لارې ټاکل.

## د زده کړې موخې (هدفونه)

د لوست او زده کړې هر پروگرام  يو لړ موخې لري چې  هغه د (زده کړې موخې) نوميږي. د ميتودونو او لارو چارو په کارولو کې ددې موخو د پلي کولو لپاره د هغې سمه او دقيقه پېژندنه خورا اړينه ده.

د زده کړې موخې په څو، څو ښو ډلبندي شوي دي. پر دې ډلبنديو باندې پوهېدل ښوونکي ته وسه ورکوي چې  د زده کړې  بېلا بېل پړاوونه وپېژني.  له ښوونکي سره مرسته کوي چې  د يو لوست د زده کړې موخې په بېلابېلو ښو چمتو کړي. د هغو موخو د تکرار مخنيوی وکړي چې  د زده کړې د يوې ځانگړې ښې يا پر يوې ټاکلې سطحې محدوديږي.

د زده کړې د موخو ترټولو مشهوره ډلبندي  په ۱۹۵٦ ميلادي کال کې بينجامين بلوم (Benjamin Bloom) او ملگرو يې وړاندې کړه. په دې ډلبندۍ کې د زده کړې موخې په لاندې دريو  ډگرونو(Domains) ويشل شوي دي:

– د پېژندنې (پوهې) ډگر (Cognitive Domain)

– عاطفي (ذهنيتي) ډگر(Affective Domain)

– رواني – حرکتي (وړتيا او مهارت) ډگر (Psychomotor Domain)

**د پېژندنې او پوهې په ډګر** کې زده کوونکو ته معلومات انتقالیږي، پوهه یې زیاتیږي او ذهني وړتیاوې یې وده کوي.
**عاطفي ډګر** د شخص په مینې، انګیزې او لید لوري پورې تړلی دی.
**په رواني – حرکتي ډګر** کې هغه فعالیتونه او مهارتونه راځي چې هم رواني او ذهني اړخ ولري او هم بدني. لکه، لیکل، ټایپول، د موسیقي غږول، بدني روزنه، د بېلابېلو کارونو سرته رسول او نور.

الف: د پېژندلو ډګر (پوهه) (Cognitive Domain)
بلوم د پېژندنې ډګر په شپږو پړاوونو ویشي. هر پړاو د بل پړاو د تحقق او پلي کولو لپاره یو پیل دی. نوموړي پړاوونه په لاندې ډول دي:

الف: پوهه (Knowledge): په پوهه کې یادول یا حفظول او کوچنیو او لویو موضوعګانې، لارې چارې او بهیرونه او بېلګې شاملې دي. د بېلګې په توګه د پښتو ژبې یو لوست دراخلئ:
- په یوې لیکنې کې د ګرامري راغلو بېو د نومونو اخیستل، یا
- د فعل د ځانګړتیاوو نومول....

ب : پوهېدل (فهم) یا زده کړه (Comprehension): پوهېدل یعنې د مطلب درک، سړی له دې پرته چې له یو مطلب سره د بل مطلب تړاو ته اړتیا پیدا کړي، له دې لارې پوهیږي، د تر پام لاندې مطلب اصلي موخه څه شی ده، لکه:
- د یوې ادبي لیکنې د ځانګړتیاوو د بیانولو وړتیا،
- له بېلګې سره د فعل د ځانګړتیاوو د بیانولو وړتیا....

ج: پلي کول یا کارول (Application) په خاصو عیني شرایطو کې له انتزاعي مطلبونو، (عمومي فکر او اجرایوي لارو، عمومي روشونو) څخه ګټه اخیستل. لکه:
- په یوې لیکنې کې له قیدونو څخه د ګټې اخیستنې وړتیا،
- د یوې توصیفي جملې د لیکلو وړتیا ...

د: تجزیه او تحلیل (Analysis): په جوړو شوو عناصرو باندې د یو تعریف، توصیف یا استدلال تجزیه، لکه:
- د جملې د جوړو شوو توکو د پېژندنې وړتیا،
- له نورو ډلو څخه د اسمي ډلې د پېژندلو وړتیا،
- په یوې توصیفي لیکنې کې د توصیف د ځانګړتیاوو د پېژندلو وړتیا....

هـ : ترکیب (Synthesis) :د یوې لیکنې د رامنځته کولو لپاره د لازمو اجزاوو او عناصرو خوا په خوا کېښودل چې دمخه په دې بڼه موجود نه وو، لکه:
- په پرتله ییز ډول د یوې مقالې د لیکو وړتیا،
- د یو داستان د لنډیز وړتیا،

– د ځانګړو موضوعګانو په هکله د يوې توصيفي ليکنې د رامنځته کولو وړتيا....

و: ارزول (Evaluation): د ټاکلي مقصد لپاره د موضوعګانو او مطلبونو د ارزولو قضاوت، لکه:
– د ليکنې (علمي او ادبي) دوو ډولونو په اړه د قضاوت وړتيا او ارزول يې
– د خپلو هم ټولګيوالو د ليکنو د ستونزو د له منځه وړلو وړتيا (د اديت د زده کړو له مخې) او نور.

**۲– عاطفي – حرکتي ډګر (وړتيا او مهارت) (Affective Domain).**

الف: تر لاسه کول، (پام کول) (Receiving): پر دې ټينګار چې زده کوونکی بايد نورو پديدو او يا د زده کړو د نورو هڅونو منلو ته مايل وي، لکه:
– د نورو (ښوونکي او زده کوونکو) خبرو ته په ټينګه غوږ نيول،
– د ښوونکي له خوا د ژبې زده کړې ته د مينې هڅول او د هغې ارزښت ته د زده کوونکو پام اړول او نور.

ب: ځواب ورکول (Responding): په دې پړاو کې زده کوونکی پديدو يا هڅونو ته په پام کولو سربېره هر هغه څه ته ځواب وايي چېويني يې يا اوري يې، لکه:
– د يوې خاطرې له مطالعې څخه خوند اخيستل،
– د هرلوست فعاليتونو ته په ځوابونو او ځان ازمايلو کې ګډون،
– د يوې خاطرې په ليکنو کې د څو کتابونو په چمتو کولو کې د مسؤوليت منل... .

**۳: رواني – حرکتي (وړتيا) ډګر: Psychomotor Domain**

الف – بدني عمومي حرکتونه: ددې ډګر فعاليتونه د سترګو او غوږونو همغږي او عمومي موخه يې پياوړتيا، چټکتيا او په حرکتونو کې دقت دی، لکه:
– په ټولګي کې د بحث او خبرو اترو وړتيا،
ب – د ښکلو حرکتونو همغږي: د همغږو حرکتونو پړاوونه يا نمونې چې معمولاً د بدن له نورو غړو سره د سترګو يا غوږونو د همغږۍ غوښتونکی دی، لکه:
– د ښوونکي يا زده کوونکو له خبرو څخه يادداشت اخيستل....

ج – د پيښو (Pantomime) له لارې او له خبرو پرته د مفهوم لېږدونه: له کلمو او خبرو پرته اورېدونکو يا مخاطب ته د پيغام لېږدول. زياتره دا چلن په وينا، نندارې او نورو هنري – ټولنيزو فعاليتونو کې لېدل کيږي،لکه:
– د يو پانتوميم Pantomime (له خبرو پرته نمايش) سرته رسول،
– د سر، لاس او يا ولو د خوځولو له لارې د مطلب بيانول. (د خبرو پر ځای له حرکت څخه ګټه اخيستل)

د– د خبرو له لارې اړيکې نيول: د څرګندو، کره او ساده کلمو او جملو له لارې د يو مطلب بيانول، لکه:

- د خپل ژوندلیک لیکل او په ټولګي کې د هغه لوستل،
- د ملګرو یا د یوې غونډې په وړاندې د یوې ادبي ټوټې او یا یو شعر لوستل،
- په ټولګي یا ښوونځي کې وینا اورول،
- د ژبې یا بل کوم شي په اړه د بحث وړتیا... .

ژبني مهارتونه، یعنې غوږ نیول، خبرې کول، لوستل او لیکل په (رواني – حرکتي) ډګر پورې اړه پیدا کوي.

موږ کولای شو د پورته نومول شوو ډلبندیو له مخې د پښتو ژبې د زده کړې موخې په لاندې دریو ډګرونو کې بیان کړو:
الف – د پېژندنې ډګر
په پام کې ده چې زده کوونکي به د پښتو ژبې په لوستلو له دغو موضوعګانو او مسئلو سره اشنا شي:
۱- ژبه او په ټولنې کې د هغې رول (ژب پېژندنه)،
۲- د ژبې ښې او په ژوند کې د ارتباطي، فکري او فرهنګي مهمو عواملو په توګه د هغې ارزښت، (ژب پېژندنه)،
۳- د معنا پېژندل او د کلمو معنایي اړیکې،
۴- د پښتو ژبې صرفي (کلمو) او نحوي (جملو) جوړښت (ګرامر)
۵- د لیکوالۍ لارې: علمي، ادبي، توصیفي،پرتلیز (مقایسوي) او نور،
٦- د سم لوستلو او سم لیکلو قاعدې او لارې چارې (لیکوالي او املا)... .

ب- عاطفي (ډګر): په پام کې ده چې زده کوونکي د لاندې مطلبونو او موضوعګانو له زده کړې ورسته مثبت فکر پیدا کړي:
۱- د پښتوژبې پالنه او د هغې د پراختیا لپاره هلې ځلې،
۲- په فردي او ټولنیزو اړیکو کې د ژبنیو مهارتونو سمه کارونه،
۳- په وینا ګانو او لیکنو کې د فکر او نظر سمه او مناسبه طرح،
۴- په هر اړخیزه توګه د نړۍ په اړه فکر کول او نور.

ج – رواني – حرکي ډګر (مهارت)
په پام کې ده چې زده کوونکي د لوست په پای کې ذهني اوعلمي وړتیا ومومي، لکه:
۱- د ټولنیزو اړیکو په ساتلو کې د ژبې د څلورګونو مهارتونو پېژندنه او کارول،
۲- د کره پښتو په لیکنه کې د لیکنو د ډول او د لیکوالۍ د وړتیاوو پېژندل،
۳- د املا او لیکوالۍ د کارونې تشخیص،
۴- په مختلفو متنونو کې د ګرامري قاعدو پېژندنه او کارونه،
۵- د معناګانو د پېژندلو د لارو چارو کارول: پرتله کول، توصیف او د ژبې او ادب د رامنځته کولو وړتیا،
٦- د سیمه ییزو ګړدودونو (لهجو) پرځای د کره (معیاري) پښتو کارول،
۷- د لیکوالۍ، ادیت او لیکنو د نورو ډولونو له لارو چارو څخه سمه ګټه اخیستل،
۸- د پخوانیو ادبي لیکنو لنډېزاو ساده کول او پر نننۍ پښتو یې را اړول.

# د تدریس لارې چارې او نمونې

تدریس د پلان جوړولو یو ډول دی. له دې امله د پلان او طرحې د اصولو او بنسټونو تابع دی. زده کوونکو ته د کتاب د محتوا (لوست) د سم تدریس لپاره یوازې یو میتود موجود نه دی. که چېرته درسي پروګرام په منطقي او اصولي ډول جوړ شوی وي، نو د تدریس مناسبو لارو چارو ته هم اړتیا پیدا کېږي. له دې امله له ګرانو ښوونکو څخه هیله کېږي د هر لوست محتوا داسې وړاندې کړي چې :

۱- په زده کوونکو کې ژبنۍ وړتیاوې (مهارتونه) (اورېدل، خبرې کول، لوستل، لیکل) په ځان ویسا، نوښت، د څېړنې او ځیرتیا او د رواني – حرکتي مهارتونو خپلواکه روحیه پیاوړې شي.
۲- په زده کوونکو کې د نوښتګر او څېړنیز ذهن د راپیدا کېدو تر څنګ د هنري اثرونو د درک او تخلیق وسه او توان پیدا شي. د ښوونې روزنې او زده کړې څېړنو ښودلې ده چې په یو لوست کې د یو ځانګړې میتود کارول اغېزمن نه دي. ښه به دا وي چې د پروګرام د جوړښت او د ژوند او د زده کوونکو د اړتیاوو په پام کې نیولو سره موجود میتودونه په ګډه او تلفیقي توګه وکارول شي.
۳- ګډه او تلفیقي میتودونه دې داسې چمتو شي چې زده کوونکي د ټولګي په بحثونو او فعالیتونو کې د ځان ازمایلو په ځوابونو کې ښکېل او شریک کړي. دا باید په یاد ولرو چې د ښوونکي او د درسي پروګرام اصلي دنده زده کوونکو ته د بشپړې او هراړخیزې ودې د زمینو چمتو کول او همدارنګه د زده کوونکو د فردي وړتیاوو او استعدادونو پالل او هغوی ته وده ورکول دي چې په یوې ازادې ټولنې کې ارزښت او اهمیت لري. د زده کوونکو د **دننیو ځواکونو خپلواکول او بشپړول** د ښوونې او روزنې اصلي موخه او **د ځان ډېره ښه او سمه پېژندنه د هغې ډېر** ستر ارمان ګڼل کېږي.

اوس له ګرانو ښوونکو سره د مرستې لپاره د تدریس په یو څو نمونو رڼا اچوو. هیله ده چې د ګټې وړ به وي.

۱ – د ګډه کار د تدریس میتود:
دې نمونې ته جان دیوي ګوته نیولې ده. وروسته نورو پوهانو هغه بشپړه کړه. ګډه تدریس د زده کړې لپاره د زده کوونکو ډله ییز کار ته ویل کېږي. ګډه تدریس د زده کړې یوه منظمه نمونه ده چې د یوې ډلې غړي په کې د پرله پسې اړیکو د ټینګولو له لارې لوست زده کوي. په دې نمونې کې زده کوونکې د زده کړې په کار کې فعال ګډون کوي او له زده کړې سره یې مینه او علاقه پیاوړې کېږي.

پر ۵ – ٦ کسیزو ډلو باندې د زده کوونکو وېش او د هغو پوښتنو د ځوابونو په وړاندې د هغوی همنظري ددې میتود ظاهري بڼه ده چې ښوونکی یې هغوی ته سپاري.

په دې میتود کې ښوونکی لوست نه توضیح کوي، بلکې مخکې له مخکې جوړې شوې پوښتنې پر زده کوونکو ویشي. په دې میتود کې د ښوونکي اصلي کار د مناسبو پوښتنو جوړول دي.

له بحث او خبرو اترو دمخه د ډلې هر غړی د نوي لوست په اړه خپل معلومات ارزوي. له هغې وروسته د لوست متن لوستل کیږي. وروسته هر زده کوونکی هغو پوښتنو ته ځوابونه وايي چې ورسره دي. د ډلو غړي تر هغې په خپل منځ کې د پوښتنو په اړه بحث او خبرې اترې کوي چې توافق ته نه وي رسیدلي.

ښوونکي کولای شي له سمعي او بصري توکو څخه کار واخلي او د سم ځواب پیدا کولو لپاره زده کوونکو ته لارښوونه وکړي. په پای کې د زده کوونکو د ډلو پوهه او پوښتنې ازمايل کیږي چې د زده کړې کچه وارزول شي.

په دې میتود کې د يو غلي او ارام ټولګي توقع نه شي کېدای. ټوکې ټکالې او خندا د ټولګي فضا خوندوروي.

۲– مخکې له مخکې سازمانوونکي میتود:

د مخکې له مخکې سازمانوونکي میتود بنسټ د (ازویل) نظریه جوړوي.

په دې میتود کې د پېژندنې جوړښت او هغه بدلونونه چې د زده کړې په بهیرکې رامنځته کیږي، دزده کړې اصلي بنسټ ګڼل کیږي. د پېژندنې له جوړښت څخه منظور د سازمان شوو اطلاعاتو، مفاهیمو او بهیرونو مجموعه ده چې زده کوونکو لا له وړاندې د پښتو ژبې په لوستونو کې تر لاسه کړي دي.

دا میتود له زده شوو لوستونو سره د نوو لوستونو پر اړیکو ټینګار کوي. په دې معنا چې که نوي او تازه مطلبونه له مخکنیو مطلبونو سره تړاو ونه لري، زده کړه به بې معنا وي او د زده کوونکو په ذهن کې به ځای ونه نیسي. مخکې له مخکې سازمانوونکي میتود د زده کوونکو د پېژندنې د جوړښت د پیاوړتیا او ټینګښت لپاره تدوین شوې دی. له دې مخکې چې نوي موضوع وړاندې شي، باید د مخکنیو موضوعګانو پر ټینګښت او پایښت يو څه زیاتوالی راشي. هره علمي برخه د يو لړ مفهومونو جوړښت لري. دا مفهومونه د مرتبو د لړۍ په بڼه جوړیږي. په دې ډول چې ددې جوړښت په لوړه څوکه کې عمومي مفاهیم او په ټیټه برخه کې يې جزئي مفاهیم راځي.

**۳– د مفهوم د تر لاسه کولو میتود:**

د مفهوم د تر لاسه کولو نظر (برونر) رامنځته کړ (۱۹۵۶). وروسته د ښوونې او روزنې نورو پوهانو هغه بشپړ کړ. (بروس جویس) او ملګري يې د وروستنو پوهانو په ډلې کې وو چې دا نظریه يې وړاندې کړه (۱۹۹۲).

د ژب پېژندنې د ګرامر د تدریس لپاره له دې میتود څخه کار اخیستل کېدای شي.

۱ – د مفهوم د تر لاسه کولو د زده کړې لارې چارې:

ټولګي ته له ننوتلو دمخه باید زده کوونکو ته د تمرین او ښوولو لپاره نمونې، بېلګې او پوښتنې چمتو کړو.

۲– زده کوونکو ته په مفهومونو باندې د بحث کولو زمینه چمتو کړو چې د نوو موضوعګانو د درک لپاره تیار شي.

۳– (د مخکې له مخې سازمان شوي میتود) ته په پام کیدای شي داسې نمونې زده کوونکو ته وړاندې شي چې د پېژندلو په جوړښت او د ذهن په پیاوړتیا کې اغېزمن او موضوعګانو ته په بنې ورکولو کې هدفمنې وي.

۴- له زده کوونکو څخه وغواړو راته ووايي چې د نمونې په ليدو يې ذهن ته څه شی راغلی او تر هر څه د نمونې کومې برخې ته يې زيات پام کړی او ولې يې دا پام کړی دی.
۵- له زده کوونکو څخه دې غوښتنه وشي چې خپلې فرضيې او اټکلونه په څو کسيزو ډلو کې وليکي.

**۴- د استقرايي تفکر ميتود:**
دا ميتود د (هيلداتابا) په نوم يو پوه ازمايلی دی. ددې ميتود له مخې ښوونکی د هدفمندو پوښتنو له لارې زده کـــوونکي د لوست لوري ته بيايي. په دې کا ر د زده کوونکو ذهن له جزيي څخه کلي (استقرا) لوري ته ځي او د لوست په پای کې په تر پام لاندې مفهومونو باندې پوهيږي او ډاډ ترې تر لاسه کوي.

د استقرايي تفکر ميتود د مفهوم د پيدا کولو له ميتود سره ورته والی لري.

**۵- د واحد (فردي – ډله ييز) کار ميتود:**
په دې ميتود کې زده کوونکی له اوربدونکي سر ببره د ښوونکي له لارښوونې او د ډلې په مرسته کولای شي خپلـــې زده کړې پياوړې او په بشپړ ډول يې مهارتي اوکارنده کړي. په نوموړي ميتود کې زده کوونکی په بشپړ ډول فعال او د ټولګي د وخت له زياتې برخې څخه ګټه اخلي. د دېوالي جرېدې، د هغې په مضمونونو غور کول او سمول، پرتله او داسې نـــور مهارتونه د کار د واحد ميتود له لارې د تدريس وړ دي.

ښوونکی د يو لوست په هکله له لازمو څرګندونو وروسته کولای شي هرې کاري ډلې ته د بشپړولو لپاره يـــوه موضـــوع وسپاري. د کار په پای کې ډلې د خپل کار پايلې د خپل استازي له لارې ټولګي ته وړاندې کوي. په دې ميتود کې کېدای شي ان د تدريس بهير هم د کار ډلو ته وسپارل شي. د بېلګې په توګه، په ليک باندې د وينا تبديلولو لپاره ټولګی په پنځو ډلو وېشل کيږي او هرې ډلې ته يوه وينا ورکول کيږي چې په ليک يې واړوي. په پای کې هره ډله هغه توپيرونه چې پام يـــې ورته اوښتی، تر خبرو اترو لاندې نيسي. په پای کې دا توپيرونه جمعبندي کيږي. کېدای شي دا کار له ټولګي بهر هم دوام وکړي. کورنۍ دنده هم د کاري ډلو په بڼې وسپارل شي.

**٦- د پرتلې ميتود**
دا ميتود په ليکوالۍ کې ډېر اغېزمن او فعال رول لري. د بېلګې په توګه، غواړو ((علمي ليکوالي)) او ((ادبي ليکوالي)) تدريس کړو. لومړی يوه علمي او ادبي ليکنه يوځای زده کوونکو ته ورکوو:

- **علمي ليکنه:**

((معمولاً قيد په يوې جملې کې د مبتدا يا صفت اندازه څرګندوي. کله يو قيد د يو فعل په اړه څرګندونې کوي او يا ټوله جمله مقيدوي. کېدای شي دا څرګندونه پراخه وي... .))

- **ادبي ليکنه:**

**((د هغوی کوډله د رود پر غاړه په نمناکو خاورو او وښو کې پټه وه. داسې برېښېده چې تا به ویل، منګولې یې په ځمکې کې منډلي او ترهغې لاندې یې په خپل زور ځان په ځمکه کې ټینګ کړی دی. باران یې سر او مخ پرېولی و.))**

**وروسته د هر متن په ځانګړتیاوو خبرې کوو او سره پرتله کوو یې.**

- **په لومړۍ لیکنه کې هره کلمه څرګنده او دقیقه معنا لري، خو په دویمه لیکنه کې کلمې څو، څو معنا ګانې لري.**
- **په لومړۍ لیکنه کې ادبي ښکلا، لکه تشبیه، استعاره، مجاز او نور نه تر سترګو کیږي، خو په دویمه لیکنه کې (کوډلې ... منګولې په ځمکې کې منډلې دي.) کارول شوې ده.**
- **په لومړۍ لیکنه کې پیغام په لږو او لنډو کلمو څرګند شوی دی، خو په دویمه لیکنه کې د یو پیغام څو اړخونو ته پام اړول شوی دی.**
- **او نور**

**د تدریس لپاره د پرتلې د میتود کارول او زده کوونکو ته د هغې لېږدول د یوې موضوع د تشریح او څرګندولو لپاره مناسب او د کارولو وړ دي. د پرتلې د میتود په واسطه د څو مسئلو یا موضوعګانو ترمنځ توپیرونه او ورته والی په ډېره اسانۍ بیانولای او څرګندولای شو.**

**۷- د ډله ییزو خبرو اترو میتود:**

**په دې میتود کې د داسې منظم او سنجول شوي بحث چې د یو ټولګي د ټولو زده کوونکو په خوښه وي، د لیکوالۍ د یوې وړتیا په هکله مطرح کوو. په نوموړي میتود کې زده کوونکو ته فرصت ورکول کیږي چې د یوې موضوع یا مسئلې په اړه د خپلو نظریو او تجربو په هکله خبرې اترې وکړي. د بېلګې په توګه، د یوې سفرنامې په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکوو. لومړی په دې هکله یو لړ پوښتنې کوو. په لاندې ډول:**

- **سفرنامه څه شی دی؟**
- **څه ګټه لري؟**
- **څو ډوله سفرنامې شته؟**
- **له کوم مهال راهیسې د سفرنامو په لیکلو پیل شوی دی؟**
- **په یوې سفرنامې کې څه ډول معلومات راټولیږي؟**
- **سفرنامه زموږ په ټولنیزو، تاریخي، ژبنیو او ادبي څېړنو کې څه مرسته کولای شي؟**
- **کومه یوه مشهوره سفرنامه پېژنئ؟**
- **یوه سفرنامه څنګه لیکلای شو؟**
- **د یوې سفرنامې د لیکلو لپاره باید کوم اصلونه په پام کې ونیول شي؟**
- **او نور**

ښوونکی کولای شي زده کوونکو ته د لوست موضوع له وړاندې ووايي چې هغوی يوڅه معلومات راټول کړي. ښوونکی بايد د خبرو اترو څارنه وکړي او د ټولګي د وخت د ضايع کېدلو مخه ونيسي. همدارنګه هڅه دې وکړي چې خبرې اترې ساده او د پوهېدلو وړ وي.

په دې ميتود کې د لوست له وړتيا پرته نورې وړتياوې هم پياوړې او غښتلې کيږي، لکه: د خلکو په وړاندې د نظر څرګندول، له خلکو سره د نظر همغږي کول، د نورو د نيوکو او انتقادونو په وړاندې زغم اود لارښوونې وړتيا، د مسئلو پېژندل او د هغوی هوارولو ته د لارو چارو لټول، غوږ نيول او خبرې کول.

۸– د پوښتنواو ځوابونو ميتود:
کېدای شي د يو مهارت د تدريس بهير د پوښتنو او ځوابونو له لارې تر سره شي. دا ميتود اوږده مخينه لري. له ميلاد څخه دمخه په پنځمې پېړۍ کې سقراط دا ميتود کارولی دی.

ښوونکی کولای شي د لوست اساسي مفهومونه او معلومات د ټولګي پر درې وليکي او د زده کوونکو په مرسته ورته ځوابونه پيدا کړي.

پوښتنې بايد ساده او د لوست اصلي مفهومونه په کې نغښتل شوي وي؛ منطقي پيوستون (پرله پسې والی) په کې وي؛ د ټولګي خبرو اترو او د زده کوونکو ذهن ته لوری ورکړای شي؛ د زده کوونکو په ورکړ شوو ځوابونو کې توافق رامنځته شي؛ ټول زده کوونکي په کې په فعال ډول برخه واخلي او پوښتنې له ساده وو پيل او په سختو پای ته ورسيږي.

د بېلګې په توګه، غواړو په يوې ليکنې کې تشبيه وپېژنو. لومړی يو متن پر دړه ليکو چې تشبيه په کې کارول شوي وي. لکه، ((ناڅاپه په خبرو راغی. خبرې يې د يوې ماشيندارې د ګوليو په څېر له خولې راووتې، لکه د تسپو تار چې وشلېږي.))
بيا يو څو پوښتنې کوو:
- خبرې له څه شي سره تشبيه شوي دي؟
- د خبرو او د ماشيندارې د ګوليو تر منځ څه اړيکې ليدل کيږي؟
- ليکوال ولې دا اړيکې په ګوته کړي دي؟
- ستاسو په اند خبرې له بل کوم شي سره پرتله کېدای شي؟

په پورته توګه د پوښتنو د ځوابونو له لارې تشبيه په ښه ډول تدريسولای شو.

**۹ – د تمرين ورکولو ميتود:**
ښوونکی له هغه وروسته چې د ليکوالۍ يو مهارت يې تدريس کړ، زده کوونکي د يو يا څو تمرينونو له لارې د نوموړي مهارت کارونې ته هڅوي. د بېلګې په توګه د ليک نښو له تدريس وروسته ښوونکی زده کوونکو ته يو متن ورکوي چې

لیک نښې په کې نه وي کارول شوي او غوښتنه ترې کوي چې هغې ته لازمې لیک نښې کښیږدي. یا داسې یومتن چې پراګرافونه یې بیل شوي نه وي او له زده کوونکو څخه غوښتنه کوي چې پراګرافونه د منطقي تسلسل له مخې جلا کړي.

ښوونکي کولای شي له دې میتود څخه په پرله پسې توګه کار واخلي.

**۱۰ – د (فردي – ډله ییزې) څېړنې میتود:**

دا میتود زده کوونکو ته وړتیا ورکوي چې د فردي یا ډله ییزې څېړنې له لارې خپلې ستونزې هوارې کړي. د نوموړي میتود له لارې باید هر یو زده کوونکی د څېړنې اصول او بنسټونه زده کړي. په دې میتود کې باید ښوونکی مخکې له مخکې زده کوونکو ته د څېړنې لارې چارې زده کړي او پخپله هم وربانديې لاسبری وي. هغه فعالیتونه چې دا میتود په کې کارول کیږي، لاندې دي:

- د یوې موضوع د څېړلو لپاره له کتابتون څخه ګټه اخیستل،
- د یوې موضوع په اړه د مرکې یا پوښتنلیک له لارې څېړنه،
- کتابتون ته مراجعه او د یوې موضوع په اړه د ګډو سرلیکونو ځانګړي کول،
- د یوې تاریخي ودانۍ په اړه د یوې پنځه کسیزې کاري او څېړنیزې ډلې جوړول،
- او نور.

**۱۱ – د مسئلې د حل میتود:**

په دې میتود کې منطقي تفکر پیاوړی کیږي. کېدای شي له دې لارې زده کوونکي ته ورزده کړای شي چې د پدیدو تر منځ تازه اړیکې ومومي. دا میتود زده کوونکي ته ورزده کوي چې په یوازې ځان او د منطقي تفکر له لارې د تر پام لاندې موضوع په هکله یوڅه ولیکي.

د بېلګې په توګه، غواړو ((د لیکلو ساده تر میتود)) د مسئلې د حلولو د میتود د نمونې له لارې زده کوونکو ته ورزده کړو. ددې کار لپاره د لاندې پنځه ګونو پړاوونو د وهلو له لارې زده کوونکو ته وښیو چې لیکوالي یواسان او شونی کار دی:

- **د مسئلې ټاکل،**
- د مسئلې د لاملونو په اړه ګومان یا د هغې ځانګړې کول،
- د حل د شونو او ممکنو لارو په پام کې نیول،
- د حل د ترټولو ښې لارې غوره کول،
- د حل د ټاکلې لارې سرته رسول.

**د بېلګې په توګه:**

۱ – احمدنه پوهېد چې د فرهنګ په اړه لیکنه څنګه او له کومه ځایه پیل کړي؛ کومه موضوع په کې راولي او څنګه یې سرته ورسوي.

۲ – هغه لومړی هڅه وکړه د خپلې ښوونځي لاملونه له پامه تېر کړي. احمد کولای شي د فرهنګ په اړه خبرې وکړي، خو د خپلو خبرو د لیکلو وسه ورسره نشته.

۳ – احمد د ښوونکي او د خپلو مخکینیو زده کړو په مرسته د حل څو لارې په پام کې ونیولې:

الف– لومړی یې یو څو پوښتنې جوړې کړي او بیا یې هرې یوې ته لنډ، لنډ ځوابونه ولیکل او وروسته یې منظم کړل.

ب – د فرهنګ په اړه بنسټیزې کلمې او مفهومونه یې راټول او هغوی ته یې پراختیا ورکړه. د هر مفهوم په اړه یې یو څو کرښې ولیکلې او وروسته یې منظمې کړې.

ج – د فرهنګ په اړه یې له ځان سره یو څو دقیقې خبرې وکړې او هغه یې ثبتې کړي. وروسته یې هغه خبرې له ټیپ ریکارډر څخه د کاغذ په مخ ولیکلې.

د – د تحقیق او مطالعې له لارې یې د فرهنګ په اړه یاداشتونه چمتو کړل. وروسته یې دا یاداشتونه تنظیم او د کار لنډیز یې د یوې مقالې په توګه ولیکه او ټولګي ته یې وړاندې کړل.

۴ – احمد د موضوع د ماهیت له مخې د ((الف)) او ((د)) له لارو څخه ګټه واخیسته.

۵ – هغه ددې کا رلپاره لومړی څو پوښتنې جوړې کړې.

- فرهنګ څه شی دی؟
- د فرهنګ جوړوونکي عناصر کوم دي؟
- له سواد سره د فرهنګ اړیکې څه شی دي؟
- د فرهنګ د ساتلو لپاره باید څه وکړو؟
- د یو هېواد د فرهنګ د غوړېدا لارې کومې دي؟

له هغې وروسته یې د هرې پوښتنې لپاره د تحقیق له میتود او له منابعو څخه په ګټې اخیستنې لنډ ځوابونه چمتو کړل. خپله لیکنه یې یوه پلا خپل یو ملګري ته ولوستله. په پای کې یې هغه ادیت او له سره یې پاکه ولیکله.

۱۲ – د تدریس عمومي نمونه

په اصل کې د تدریس عمومي نمونه د لوست د طرحې ډول دی او په عمومي مفهوم یو ټاکلی چوکاټ دی چې د تدریس مهم توکي په کې پیشبیني کېدای شي.

د تدریس میتودونه د زده کوونکي د فعالیت یا نه فعالیت پر بنسټ په فعالو او غیر فعالو دوو ډلو ویشل کیږي. د فعال میتود په تدریس کې زده کوونکي پخپله د زده کړې په بهیر کې ګډون کوي او د هغې محور (شاګرد محوره) دی. په غیرفعال میتود کې یا ښوونکی په پرله پسې خبرې کوي او کار کوي او زده کوونکی چوپ او بېحرکته پاتې کیږي (معلم محوره) او یا دا چې ښوونکی او زده کوونکي هر یو خپل، خپل کار کوي او یو د بل په کار کې لاس نه وهي.

څرګنده ده چې د زده کړې پرمختګ د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکي د برخې اخیستنې او فعالیت پورې تړلی دی. د تدریس عمومي نمونه د زده کړې د بهیر د هر ډول سریزه ګڼل کیږي.

دا نمونه د لومړي ځل لپاره په ۱۹۶۱ کال کې (رابرت ګلیزر) معرفي کړې او پنځه پړاوونه لري:
**۱ – د زده کړې د موخو ټاکل:** د زده کړې د موخو (عمومي – جزیي) په ټاکلو کې یې پوهې، ورتیا او ذهنیت ته پام واړول شي.

۲ – د مخکنیو زده کړو معلومول او د لوست د پیل ارزونه: ښوونکی د زده کړې لپاره د زده کوونکي له چمتووالي څخه د ډاډمن کېدو په موخه د هغوی مخکنۍ پوهه پیشبیني کوي او د څرګندو کړنو له لارې یې بیانوي. ښوونکی د زده کوونکو د مخکینۍ پوهې د معلومولو لپاره پوښتنې جوړوي چې د تدریس تر مخه یې له زده کوونکو څخه کوي. له دې ارزونې څخه لاس ته راغلي معلومات ښوونکی په دې پوهوي چې ایا زده کوونکي د نوي لوست زده کړې ته چمتووالی لري او که نه. ایا دې ته اړتیا شته چې د لوست له پیل څخه دمخه د تمرین په توګه یو څو پوښتنې وشي او که نه.

۳ – د زده کړې د وسایلو او میتود ټاکل: په دې پړاو کې باید د هر لوست د تدریس لپاره د هغې د وړ او مناسب میتود (توضیحي وینا، د رول لوبول، پلټنه او څېړنه، د ریپوټ چمتو کول، مرکه، پوښتنې او ځوابونه او ...) څخه ګټه واخیستل شي. همدارنګه د زده کړې له وسایلو او درسي مرستندویه موادو څخه استفاده وشي.

۴ – د شرایطو او د زده کړې د فعالیتونو سمبالښت: ښوونکی باید د تدریس په هکله لازم معلومات او امکانات پیشبیني او چمتو کړي. وروسته ټول شیان یو د بل تر څنګ داسې کښېږدي چې مولد، معنا لرونکي او پرله غښتې (منسجم) وي.

۵ – د ارزولو د لارو چارو ټاکل: ارزونه د لوست او تدریس د دوام یا بدلون لپاره تر ټولو ښه لاره ده. د بریالیتوب او نېمګړتیا ارزول د ارزونې له لارې څرګندیږي.

ښوونکی کولای شي زده کوونکي د شفاهي ارزیابۍ، لیکلې ارزیابۍ او د څارنې د ارزیابۍ له لارې وارزوي. د څارنې ارزونه په ټولګي کې د ګروپي کار په ترڅ کې کېدای شي، پرته له دې چې زده کوونکي وپوهیږي هغوی د ښوونکي تر ارزیابۍ لاندې دي.

د اووم، اتم او نهم ټولګي د پښتو د لوست کتابونه ۲۸ لوسته لري. هر لوست په دریو اوونیو کې تدرسیږي. د دریم ساعت په پای کې ښوونکی ډاډ تر لاسه کوي چې زده کوونکي د لوست ټولې موخې تر لاسه کړې دي؛ پوهه یې زیاته شوې؛ ژبنۍ وړتیا یې پیاوړې شوې او ذهنیت یې مثبت بدلون موندلی دی. په دې موخو کې د ژبې زده کړه، خبرې کول او لوستل تـــر هرڅه دمخه دي.

# لومړی لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | حمد | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهـــارتي اوذهنيتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې مـــوخې ترلاسه کړي:<br>ــ زده کوونکي به الله جَلَّ جَلَالُهُ ښه وپېژني.<br>دپاک الله جَلَّ جَلَالُهُ دمخلوقاتو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>ــ زده کوونکي به حمد ولوستلی اوځینې بیتونه به یې په تختې ولیکلی شي.<br>ــ زده کوونکي به له حمد څخه اخیستل شوی مفهوم نوروته وویلـــی شي.<br>– زده کوونکي به دنووکلمو سره اشنا اوپه جملوکې به یې وکـــارولی شي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل، په یوازې توګه لیکل، سوال او ځواب، ګروپـــي فعالیتونه.عملي کار. | |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | تخته، تخته پاک، تباشیر، کتاب، کتابچه، مارکر، د کلمو لیکل شـــوي کارتونه، چارتونه، ټیپ ریکارډر، کسټونه او... | |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، عملي کار، ګروپي کار، شفاهي پوښتنې، د یادښـــت کتابچه. | |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام ویل، د حال احوال پوښتنه، د ټولګي نظم او ترتیب، د حاضـــرۍ اخیستل. د کورنۍ دندې اصلاح او د تېر درس ارزونه. | ۶ دقیقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | تاسې په ژوند کې هرنیک کاردچا په نوم پیل کوئ؟<br>ستاسې دتېرکال لومړی درس په کومې کلمې پیل شوی و؟<br>څوک ویلی شي چې حمد څه ته وایي؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: | |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی وروسته تر دې چې عنوان په تختــې ولیکــي د حمد متن دې په مناسب آواز ولولي او په مفهوم دې خبرې وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې وهڅوي چې له ځان سره له لوستلو نه وروسته د متن په لوستلو کې برخه واخلي او پوښــتنو تــه ځوابونه ووايي.<br>ــ له زده کوونکو څخه دې د صفت او موصوف په هکلــه پوښتنه وکړي چې په درس کې يې په نښه کړي او په تختــه دې وليکي او پاتې زده کوونکي دې په وار ســره جملــې جوړې کړي.<br>ــ زده کوونکي دې و هڅول شي چې د ټولګي په مخ کې په خپل وار سره د درس مفهوم او لنډيز په خپله ژبه ووايي.<br>ــ د ټاکلو درسي هدفونو لپاره دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي او ګروپي کار دې وروسپارل شي، ښــوونکی دې د ګروپونو د څارنې په بهير کې  هر ګروپ تشويق کړي.<br>ــ زده کوونکو سره د ې د جملو په جوړولو او د پوښتنو په ځوابولو کې مرسته وکړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده وسپاري. | ــ زده کوونکي دې په پوره غور غوږ ونيسي او د حمد لوستل دې وڅاري.<br>ــ زده کوونکي دې په لوستلو کې ونډه واخلي او پوښتنو ته دې ځوابونه ووايي.<br>ــ زده کوونکي دې صفتونه په کتابچو کې وليکي او په جملو کې دې وکاروي.<br>ــ زده کوونکي دې د لوست مفهوم په خپلو خبرو کې د ټولګيوالو په وړاندې ځرګند کړي.<br>ــ هر زده کوونکی دې د سيالۍ په ډول د ګروپي کار په اجراء کولو کې خپله ونډه وښيي.<br>ــ زده کوونکي دې د لارښوونې سره سم جملــې جوړې او وليکي.<br>ــ زده کوونکي دې کورنۍ دنده واخلي او په کور کې دې حل کړي. | ۳۵ دقيقې |
| د متن د ستونزمنو برخو توضيح کول: | زوال: له منځه تلل<br>د صفت او موصوف ترکيبونه: د توصيفي ترکيبونو په نامــه يادېږي.لکه توره تخته چې توره صفت اوتخته موصوف دی.<br>زيار: کوښښ او زحمت<br>توښه: ذخيره<br>اړتيا: ضرورت<br>سپما: پس انداز<br>منځپانګه: د متن محتوی<br>دنده: وظيفه<br>هوډ: عزم او اراده<br>وزګار: بيکار | |

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

**په لوست کې د راغلو صفت او موصوف څخه نور مثالونه دا دي:**

**ــ رشاد د خپل ټولګي ممتاز زده کوونکی دی.**

**ــ لوړ خیالونه او ژور فکرونه د الفت صاحب ډېر مشهور نثري اثر دی.**

**ــ حمد یوازې د لوی څښتن تعالی له نامه سره ښایي.**

**د حمد په متن کې درې عام نومونه پیدا کړئ.**

**مانی، معمار، پادشاه، کور**

**الله ﷻ خاص نوم دی. نومونه د معنٰی اومفهوم له مخې داډولونه لري:**

**خاص نوم او عام نوم.**

**خاص نوم: هغه نوم دی چې د یوه مشخص ذات، شخص، زمان او مکان څرګندونه وکړي، لکه: الله ﷻ، لمر، محمد صدیق روهي، کابل.**

**عام نوم: هغه نوم دی چې په همنوعو باندې یو شان دلالت کوي، لکه: ونه، سړی، مرغه، ښار، هلک، نجلی، ښځه.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

حمد: حمد دا ﷲﷻ ستاينې ته وايي، شكر ادا كولو ته يې هم وايي، چې له ده څخه پرته بل چا ته نه استعمالېږي او يوازې له ده سره ښايي، زياتره شاعران خپل شعري كتابونه په حمد پيل كوي، رحمان بابا چې د پښتو ژبې ستر شاعر دى خپل كلام يې په حمد ښكلى كړى دى.

نوميالى عارف،دپښتوخوږژبى شاعرعبدالرحمن بابا "رح" په ۱۰۴۲ هجري قمري كال د پېښور په جنوب (بهادر) نومي كلي كې ستركې نړۍ ته پرانيستې وې.پلاريې عبدالستار،دومندوپښتني قبيلې ته منسوب و.دعبدالرحمان بابا له زيات ادبي شهرت اوټولنيز مقبوليت سره بياهم دهغه دژوند حالات ډېر څرګند، نه دي كه څه هم دخلكو ترمنځ په فلكلوري رواياتوكې دهغه دژوند پېښنو په باب ډول ډول كيسې اوخبرې شته، خو دمستندوسرچينواوماخذونودنشتوالي له امله هغه دباوروړنه ښكاري. خويوازې دځان په اړه په خپلواشعاروكې لږې ډېرې څرګندونې لري. خودرحمان بابا "رح" په هكله محمدهوتک په خپل مشهوراثرپټه خزانه كې( ۱۱۴۲) هـ ق كال (تاليف) په ترڅ كې ليكي چې: عبدالرحمن باباپه وړوكتوب كې دفقهې اوتصوف كتابونه په خپل كوراوكلي (پېښور) كي له ملا محمد يوسفزي څخه ولوستل. اودنوروزده كړو لپاره كوهاټ ته تللى او هلته يې لوستي اودوخت په تېرېدوسره لوى عالم شو. د ځوانۍ په نوي اوتاند پسرلي كې يې دنيايي كارونوته شا كړه اوتل به دخداىﷻ په عبادت اورياضت بوخت و. په كوهاټ كې يې له ستروحاني شخصيت حاجي بهادركوهاټي څخه طريقه اولاس نيوى وكړ. رحمان بابا له كوچني والي څخه ددينې علوموترڅنګ دلوړادبي ذوق اوپياوړي استعداد خاوند ود ځوارلس پنځلسو كلونوپه عمرېې په شعرويلو پيل كړى، بيايه دې لړكې داستادۍ لوړ پوړته رسېدلى اوديوه ځانګړي ادبي مكتب ځښتن شوى،چې دهغه وخت ډېروپياوړواونومياليوشاعرانودده ادبي لاره خپله كړې اوهم په راوروسته زمانوكې تردانه ډېرشاعران دهغه پيروان اومينه وال دي چې يوشمېر مشهوريې عبارت دي له يونس خيبري، معزالله مومند، اخوندګدا، حافظ الپوري،ميانعيم متي زي، عبدالعظيم رانيزى، عبدالرحيم هوتک، مطيع الله اوداسې نوروڅخه، صوفي شاعرعبدالرحمان بابا"رح"په كال ۱۱۲۸ هجري قمري له دې فاني نړۍ څخه ابدي اوتل پاتې نړۍ ته مخه كړه اودپېښور هزارخانې په هديره كې خاوروته وسپارل شواو له ده څخه داشعارويو ښكلى ديوان پاتې شو چې تراوسه پورې څو ځله چاپ شوى اواوس دټولوپښتنوليكوالو، شاعرانواونورومينه والوسره شته چې زياتره پښتانه اوپښتنې ميرمنې دده په اشعاروپالونه ګوري.

**مأخذونه:**


پټه خزانه، محمد هوتک بن داود، د پوهنې وزارت، ۱۳۳۹هـ.ش. كال چاپ.

ادب پوهنه، محقق سيد محي الدين هاشمي، كال، ۱۳۸۱هـ.ش.

د افغانستان مشاهير، محقق سيدمحي الدين هاشمي، خپرونكى ميهن خپرندويه ټولنه، كال ۱۳۸۶هـ.ش.

# دویم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه | |
|---|---|---|---|
| ۱ | د لوست موضوع: | خیرالبشر | |
| ۲ | د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې: | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به خیرالبشر (حضرت محمدﷺ) په ښه توګه وپېژني.<br>ـ د اسلام د ستر لارښود د صورت او سیرت په هکله به معلومات لاس ته راوړي.<br>ـ زده کوونکي به د نوي لوست متن سم ولوستلی شي، ځینې نوې کلمې به په جملو کې وکارولی شي.<br>ـ زده کوونکي به له متن څخه اخیستل شوی مطلب نورو ته بیان کړای شي.<br>ـ زده کوونکي به د نویو لغتونو په معنا پوه شي او هم به یې په جملو کې وکارولی شي.<br>ـ زده کوونکي به له هغو بهرنیو لیکوالو سره اشنا شي چې د حضرت محمدﷺ د ژوند په اړه یې لیکنې کړې دي. | |
| ۳ | د تدریس لارې: | په یوازې توګه لوستل، لیکل، سوال او ځواب، ډله ییز فعالیتونه، عملي کار. | |
| ۴ | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي: | کتاب، قلم، تخته، کتابچه، د امکان په صورت کې د کلمو لیکل شوي کارتونه. | |
| ۵ | د ارزولو لارې او وسیلې: | سوال او ځواب، عملي کار، ګروپي کار، شفاهي پوښتنې، د یادښت کتابچه. | |
| ٦ | د زده کړې او تدریس فعالیتونه: | سلام ورکول، د حال احوال پوښتنه، نظم او ترتیب، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې اصلاح او د تېر درس ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | د انګېزې رامنځته کول: | ـ تاسې د پیغمبرانو له جملې څخه د څو تنو نومونه اخیستلی شئ؟<br>ـ قران کریم پر چا نازل شوی دی؟<br>ـ د حضرت محمدﷺ ویناوو ته څه ویل کېږي او له ایتونو سره څه توپیر لري؟ | ۴ دقیقې |

<table>
<tr><th>د ښوونکي فعالیتونه:</th><th>د زده کوونکو فعالیتونه:</th><th></th></tr>
<tr><td>ـ ښوونکی دې د نوي درس عنوان په تخته ولیکي او وروسته دې متن په مناسب آواز ولولي او زده کوونکي دې د خپلو لوستلو په ترڅ کې وڅاري.<br>ـ زده کوونکو ته دې د چوپتیا لوستلو لارښوونه وشي او بیا دې په لوړ غږ د زده کوونکو لوستل وڅاري او نیمګړتیاوې دې اصلاح کړي.<br>ـ ښوونکی دې د صفت د ډولونو په هکله د کتاب یو څو مثالونه د تختې پرمخ ولیکي او تشریح دې کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د متضادو کلمو په هکله د ټولګي په مخ کې نورو ته معلومات او مثالونه ورکړي.<br>ـ ټاکل شوو ګروپونو ته دې لارښوونه وکړي چې پر (ی) ګانو پورې اړوند مثالونه له کتاب څخه پیدا او په خپلو کتابچو کې دې تر لیکلو وروسته پرې خبرې وکړي.</td><td>ـ زده کوونکي دې په پوره غور سره لوست ته غوږ ونیسي.<br>ـ زده کوونکي دې په چوپتیا سره درس ولولي او مشکل ځایونه دې په نښه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې غوږ ونیسي او په کتابچو کې دې د ښوونکی تشریح ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې په وار او جرئت سره د ټولګي په مخ کې خبرې وکړي او د متضادو کلمو مثالونه دې ووایي.<br>ـ زده کوونکي دې په ډله ییز کار کې د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل وکړي.</td><td>۳۵ دقیقې</td></tr>
</table>

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

ـ حضرت محمدﷺ د الله ﷻ غوره شوی پیغمبر دی چې د خاتم النبین او خیرالبشر په صفتونو هم نومول شوی دی.

ـ د سمې لارې له خپلولو څخه مطلب د سمې لارې غوره کول دي.

ـ شپه یې ورونیوله: مطلب ځینې د ټولې شپې په وینښه تېرول دي.

ـ سپیده ې چاودېدې یعنې شفق داغ شو.

ـ لبیک: هر کلی.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه:**

ـ په پورتني متن کې صفتونه پیدا کړئ.

ـ سپین (صفت یا ذاتي صفت)

زهیرتیا (مجرد صفت)

**د لاندې لغتونو متضادې کلمې دا دي:**

وروستی: ړومبی

پېره: نه ملامتي

کینه: مینه

ژړا: خندا

لږ: ډېر

ښکاره: پټ

بریالیتوب: ناکامي

ښه: بد

د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:

د خدایﷻ نازولی پیغمبر د دومره ښکلي او سپیڅلواخلاقو څښتن و چې دقلم په څوکه یې لیکل اسانه کارنه دی. رســـول اللهﷺ هیڅکله دڅان لپاره له چاڅخه بدل نه دی اخیستی یوازې هغه وخت یې دخدایﷻ لپاره بدل اخیسته چې د خدایﷻ قانون به ترپښولاندې کېده.

له قهرلرې اوله هرچاڅخه ژر پخلاکېده هومره سخي او پراخ لاسی و چې داندازې ټاکل ورته ناممکن و. د هغه چا په شان یې ورکړه کوله چې بې وسي یې هډو په خیال کې نه راځي.

حضرت ابن عباس صاحب وايي: رسول اللهﷺ ترهرچا سخي و، په ځانگړې توگه درمضان په میاشت کې.

دروژې په میاشت کې به چې جبرائیل (ع) ورته راته په هره شپه د رمضان کې نو پیغبر(ص) ته به یې قرآن کریم اورولـــو.او پیغمبر(ص) په سخاوت کې له رحمت اورونکي باد څخه هم گړندي و.

حضرت جابرﷺ وايي داسې هېڅ نه دي شوي چې څوک ترې وغواړي اودی ووايي چې نه.

همیشه یې دخلکو پوښتنه کوله اودخلکو له ژوند څخه یې ځان خبرولو ،ښو ته یې ښه ویل اوبدو ته یې بد ویل .

دخپل ځان لپاره یې ځانگړي ځای نه په گوته کاوه . کوم ټولي ته به چې ورغی هرځا ی به چې خالي و، هملته به کېناسته اوپه همدغه کاریې نوروته امرکاوه. د خوښۍ په وخت کې یې سترگې ښکته اچولې ټو له خندا یې یوازې تبسم وه، په خندا کې به یې غاښونو دشبنم د څاڅکي په څیر پړک واهه .

د خدایﷻ د نعمتونو ستاینه به یې کوله که څه هم کم به وو، د یوشي بده یادونه به یې نه کوله. د خوراک یې نه ســـتاینه کوله اونه یې بدویل . که حق به تر پښو لاندې شو نو ترڅو به یې چې حق حقدار ته نه و سپارلی او یا به یې حق ثابت کړی نه و تر هغه به یې آرام نه کاوه. که خپلې خبرې راغونډې کړو، نو باید ووایو چې رسول اللهﷺ د غوره او منل شـــوواخلاقو څښتن و.

**ماخذ:** سیرة النبيﷺ مصنف مولانا صفی الرحمن مبارک پوري .پښتو ژباړه مولوي جانبازسرفراز

# دریم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرليکونه: | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | کار او ژوند | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولی شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ په ژوند کې به د کار په اړتیا وپوهېږي.<br>ـ په ورځني ژوند کې به د کار د لارو چارو د مونـدلو پـه هکلـه معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ زده کوونکي به په ځان کې د کار وړتیا پیدا کړي او ګټې به یې نورو ته وویلای شي.<br>ـ زده کوونکي به دا ډاډ ترلاسه کړي چې کار د ژوندانه د هوسـايې وسیله ده.<br>ـ زده کوونکي به متن په سمه توګه ولیکلای او ولوستلای شي.<br>ـ زده کوونکي به د متن د نوو کلمو په معنا پوه او په جملو کې به یې وکارولای شي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل، په یوازې توګه لیکل، سوال او ځواب، ګروپـي فعالیتونه. | |
| ۴ | **د تدریس وسيلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د کلمو لیکلي کارتونه، (د امکان په صورت کې کمپیوټر، سلایدونه، فلش کارتونه ...) | |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسيلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحریـري پوښـتنې، د ښـوونکي د یادښت کتابچه. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي ترتیب او تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په طرحه کولو سره د خپل درس عنوان ترلاسه کړي.<br>ـ د ژوند پرمختګ په څه کې دی؟<br>ـ د ژوند د هوسايۍ لپاره باید څه وکړو؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: | |
|---|---|---|
| ښوونکی دې د تېر او نوي درس ترمنځ داسې اړیکې ټینګې کړي چې زده کوونکي د نوي لوست له سرلیک سره مینــــه وښیي. | ــ زده کوونکي دې ورته په مینه پاملرنه وکړي. | ۳۵ دقیقې |
| ــ ښوونکی دې عنوان په تختې ولیکي او زده کوونکي دې په چوپې خولې لوستلو ته وهڅوي. | ــ زده کوونکي دې لوست په چوپه خوله ولولي. | |
| ــ ښوونکی دې نوی لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي او لغتونه دې له معنا سره پر تختې ولیکي. | ــ زده کوونکي دې لوستلو ته غوږ ونیسي او لغتونه دې په کتابچو کې ولیکي. | |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په وار سره وغــــواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او متن ولولي. | ــ زده کوونکي دې په مینه او جرئت متن په لوړ غږ او ښه آواز سم ولولي. | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته وخــــت ورکـــړي چـــې د ستونزمنو برخو او لغتونو پوښتنې وکړي او د لوست لغتونــــه په جملو کې راوړي. | ــ زده کوونکي دې خپلې ستونزې حل کـــړي او لغتونو ته دې جملې جوړې کړي. | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي چې هـــر ګروپ د فعالیتونو یو یوپا راګراف ولولي او اړوندو پوښتنو ته دې ځوابونه ورکړي. د هر ګروپ استازی دې د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې ډلې نظر دې وړاندې کړي. | ــ زده کوونکي دې ډله ییز فعالیت اجرا کړي او د هرې ډلې استازی دې د خپلو ګرپونو نظرونه په وار سره وړاندې کړي. | |
| ــ ښوونکی دې د ډلو د نظرونو په برخه کـــې تېروتنـــې او نیمګړتیاوې بشپړې کړي. | ــ زده کوونکي دې پوره پاملرنه وکړي او خپلـــې تېروتنې دې سمې کړي. | |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چـــې پـــه لوست کې راوړل شوی بیت په نثر واړوي او پـــه خپلـــو کتابچو کې یې ولیکي. | ــ زده کوونکي دې په فعالیت کې ونډه واخلي او د بیت مفهوم دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| ــ ښوونکی دې د کورنۍ دندې سپارښــــتنه وکـــړي چـــې زده کوونکي د مېږي او چرچرۍ د ژوند په هکله یو څــــه ولیکي. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي سپارښتنو ته پاملرنه وکړي او د کورنۍ دندې موضوع دې پـــه خپلـــو کتابچو کې ولیکي. | |

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

بې زحمته راحت نشته زما وروره!

که راحت غواړې، زحمت درلره بویه!

دا بیت د ادبي فنونو له مخې په معنوي صنعتونو کې د مدعا المثل په توګه راغلی دی، په دې بیت کې د شاعر مـــدعا داده چې د راحت غوښتلو په صورت کې د زحمت ګاللو اړتیا ده، نو د دې مدعا د ثبوت لپاره یې ((بې زحمته راحت نـــشته!)) متل کارولی دی.

متلونه هغه غوره، لنډې، په وزن برابرې، د پراخ مفهوم لرونکې ویناوې دي چې د مجربو خلکو د تجربو په پایله کې رامنځته شوې پخې ویناوې دي چې په کلام کې د استدلال په ډول استعمالېږي، په هر متل کې کتاب کتاب معناوې پرتې دي، یعنې

سمندر يې په کوزه کې ځای کړی دی.
نغښتې: پیچلی یا پیچلی شوی.
وګړي: خلک
هیلې: ارزوګانې
ګالي: د ګالل له مصدر څخه اخیستل شوی د تحمل کولو او زغملو په معنا.
ځواک: توان او قدرت
پیاوړی: قوي، غښتلی
اوربښت: باران
ځواکمن: قدرتمن
هوسا: آسوده او آرام

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**
ـ په پورتني متن کې پنځه عام نومونه ومومئ. ـ غرونه ـ حشرات ـ سوړې ـ خواړه.
ـ په پورتنیو ترکیبونو کې د صفت او موصوف په نښه کړئ.
هوسا ژوند ـ ستره بلا ـ ځواکمن بدن ـ پرمختللي هېوادونه ـ وزګار وخت ـ بې ځایه وخت
(هوسا صفت اوژوند موصوف)

**اضافي معلومات:**
هرانسان په فطري توګه له یو لړ استعدا دونو څخه برخه من دی چې له خپلو جسمي اوفکري ځواکو نو اوامکاناتو په کــار اخیستنې سره ډېر هغه ستونزمن کارونه چې په لومړي نظر ناشوني ښکاري، ترسره کوي، استعدادونه د یوه واحد خدای ﷻ ورکړه ده چې پرانسان یې لورینه شوېده اودغه خدایي ورکړه دانسان په وجود کې داسې پټه نغښتې ده چې لیدنه اوتشخیص یې ځانګړې مهارت غواړي. د ودې، غوړېدنې اوبرسېره کېدنې لپاره یې لازمې پاملرنې اودلاروچارو برابرولو ته ډېره زیاتــه اړتیا ده. په دې کې شک نشته چې که دیوې ټولنې ټول وګړي په فطري اوعنعنوي توګه له ډېرو ښو اســتعدادونو څخــه برخه من هم وي هغه چې دسلیم عقل خاوندان دي دغې الاهي لورینې ته په ډېره درنه سترګه ګوري اودهغه دودې اوفطري غوښتنې له مخې دژوندهره شیبه غنیمت ګڼي، کارکوي اوزیارباسي اوپه دې لاره کې له هیڅ ډول هلو ځلو څخه لاس نــه اخلي په پوره باور اوډاډ په دغه لارکې خپل ځان له هرډول ستونزو سره د مقابلې لپاره چمتو کوي خوویلی شو چې دغــه داستعدادونو غوړېدنه دټولنیزژوند په بهیر کې دډېرو مهمو مسلو څخه ګڼل کیږي اوهغه دهرچا او په ځانګړې توګه اوپــه لومړي ګام کې د میندو، پلرونو اوبیا دښو ونیزو اوروزنیزو چارو د سمبالوونکو له پامه هیڅکله ونه غورزیږي ځکه همدوی کولای شي چې ماشومانو اوځوانانو د هراړخیزې ودې اوپالنې په مسئله کې ډېر اساسي اوارزښتناک رول په ډېره اواغیزمنه توګه ترسره کړي نو دیوه هوسا اوسوکاله ژوند لپاره په ځانګړي اوډله ییزه توګه هرډول فکري، جسمي او فزیکي کارونو ته همت کول ډېره اړینه خبره ده چې د ژوند چارې په ټینګه اراده، پوره استعداد او ځواک سرته ورسوي.

# خلورم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | نومځري (ضمیرونه) | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې دا لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به نومځري وپېژني، په معنا او مفهوم به يې وپوهېږي.<br>ـ زده کوونکي به د نومځرو او ډولونو په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ زده کوونکي به په کلام او جملو کې د نومځرو توپیر وکړای شي او نورو ته به يې وښودلی شي.<br>ـ زده کوونکي به نومځري په صحیح ډول ولوستلای او ولیکلای شي.<br>ـ زده کوونکي به د نومځرو په پېژندلو سره د تېروتنو د مخنیوي په فکر کې شي.<br>ـ زده کوونکي به د نومځرو په ارزښت پوه او نورو ته به يې بیان کړای شي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل او لیکل، سوال او ځواب، ګروپي فعالیتونه. | |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د کلمو لیکلي کارتونه، د امکان په صورت کې ځینې ګرامري کتابونه. | |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، عملي کار، ګروپي کار. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام ویل، د حال او احوال پوښتنه، د ټولګي پاکوالی، ترتیب او تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې اصلاح او د تېر درس ارزونه. | ٦ دقیقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په کولو سره د درس عنوان ته ورسېږي یا دې له زده کوونکو سره د بحث په لړ کې پیدا کړي.<br>ـ ستاسو په نظر په ژبه کې داسې کلمې شته چې د نومونو په ځای استعمال شي، که وي نو څه نومېږي یا څه ورته وایي؟<br>ـ ایا نومځري (ضمیرونه) له نورو کلمو سره توپیر لري؟<br>ـ ایا نومځري (ضمیرونه) په خپلو منځو کې هم توپیر لري؟ | ۴ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: | |
|---|---|---|
| ـ د نوي او تېر درس د اړیکو په ټینګولو سره دې زده کــوونکي د درس بهیر ته وهڅوي.<br>ـ ښوونکی دې د زده کوونکو د پاملرنې لپاره د نوي لوست عنوان په تختې ولیکي او زده کوونکي دې په پټه خوله لوستلو ته راوبولي.<br>ـ ښوونکی دې نوی لوست په مناسب آواز ولولي، اصلي مطلب دې ورته په ساده ژبه بیان کړي.<br>ـ ښوونکی دې نوی درس په څو تنو زده کوونکو پــه وار ســره د ټولګي په مخ کې ولولي.<br>ـ ښوونکی دې نوي لغتونه له معناوو سره پــه تختــې ولیکــي او زده کوونکو ته دې د پوښتنو کولو وخت ورکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپلو جوړو شوو ډلو کې په ترتیب (۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ٦) فعالیتونو په هکلــه خبرې اترې وکړي. وروسته دې د هرې ډلې لیکلي پاڼه د ګروپ د استازي په وسیله نورو ته واوروي.<br>ـ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخــه وغــواړي چــې د نومځري د ډولونو مثالونه په تختې ولیکي او د نیمګړتیاوو په برخــه کې دې ورسره مرسته وکړي.<br>ـ ښوونکی دې د څو پوښتنو په وسیله د نوي درس ارزونه وکړي.<br>ـ ښوونکی دې د درسي کتاب د کــورنۍ دنــدې سپارښــتنه او لارښوونه وکړي. | ـ زده کوونکي دې ورته پاملرنه ورکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په آرامتیا سره نــوی لوست ولولي، ستونزمن ځایونه دې په نښه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې ورته په مینــه غــوږ ونیسي او پر مفهوم دې ځانونه پوه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې په لوستلو کې خپلــه ورتیا وښیي.<br>ـ زده کوونکي دې نوي لغتونه په خپلــو کتابچو کې ولیکي او خپلې پوښــتنې دې مطرح کړي.<br>ـ زده کــوونکي دې د ښــوونکي لــه لارښوونې سره سم عمل وکړي او ســپارل شوی فعالیت دې سرته ورسوي.<br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي لارښوونې ترسره کړي او د نومځرو مثالونه دې پــر تخته ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې په ځواب ویلــو کــې ونډه واخلي.<br>ـ زده کــوونکي دې د کــورنۍ دنــدې موضوع په کتابچو کې ولیکي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

۱ـ ځانګړي نومځري دوه ډوله دي: غښتلي نومځري او کمزوري نومځري.

غښتلي نومځري یا منفصل ضمیرونه، لکه: زه، ته، ما، تا، موږ، تاسو، دہ، دی، دوی.

کمزوري نومځري یا متصل ضمیرونه، لکه: مې، دې، یې، مو.

۲ـ لاندې نومځري په دغوغښتلویامنفصلو نومځرو کې شامل دي:

زه ـ منفصل یا غښتلی ضمیر. د متکلم لپاره

ته ـ منفصل یا غښتلی ضمیر. د مخاطب لپاره

ستا ـ اضافي یا ملکي ضمیر. د مخاطب لپاره ملکي ضمیر دی چې ملکیت څرګندوي.

هغه ـ اشاري ضمیر.

۳ـ په لاندې جملو کې نومځري دا دي:

زه هره ورځ ښوونځي ته ځم. (زه)

د ده کتاب له ما سره دی. (ده)

څوک به راغلی وي؟ (څوک)

له چا سره دې ولیدل؟ (چا)

ایا دا کتاب ستا دی؟ (ستا)

هغه کله راځي؟ (هغه)

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

ضمیر:

ضمیرونه هم دنومونو او صفتونو ترڅنګه دګرامر یوه برخه جوړوي. ضمیرونه د نوم پر ځای د تکرار د لرې کولو لپاره کارول کېږي چې پخوا یې په کلام کې ذکر راغلی دی.

د ضمیرونو دنده په خبرو کې د نومونو د تکرار مخنیوی دی، ځکه چې تکرار د کلام د ضعف سبب کېږي.

ضمیر دا ډولونه لري:

۱ـ شخصي ضمیرونه:

دغه ضمیرونه د وګړو (اشخاصو) لپاره راځي. دا ضمیرونه دوه ډولونه لري:

الف ـ غښتلي (قوي) منفصل ضمیرونه:

هغو ضمیرونو ته ویل کېږي چې په یوازې (خپلواک) توګه استعمالېږي او د بلې کلمې سره پیوست او متصل نه راځي یا په بل عبارت په خپلواکه توګه معنا ورکوي. د دغو ضمایرو مفرده بڼه دوه حالتونه لري. اصلي حالت او غیر اصلي حالت.

د مطلب د ښه وضاحت لپاره په لاندې ډول وړاندې کېږي.

غښتلي (قوي) ضمایر:

غښتلي ضمایر په خپلواکه توګه استعمالېږي او خپلواکه معنا لري چې اصلي حالتونه مفرد او د جمع شکلونه یې دا دي: (زه، موږ، ته، تاسې، دی، دوی)

مغایره شکلونه یې دا دي: (ما، تا، ده، دوی).

ب ـ کمزوري ضمایر:

هغو ضمیرونو ته ویل کېږي چې په خپلواکه توګه کومه معنا نه ورکوي او کله چې د یو نوم سره استعمال شي، خپل مفهوم او معنا په ډاګه کوي.؛

پاتې دې نه وي چې دغه ضمیرونه ملکي ناخپلواکه ضمیرونه هم دي.

د مطلب د ښه څرګندتیا لپاره دغو مثالونو ته پاملرنه وکړئ.

مې، دې، یې (مفرد) مو، یې، یې (جمع)

مثالونه:

خور مې راغله، کتاب مې ولوست، قلم دې راکړه!، کور دې جوړ کړ؟ کتابونه مو واخیستل، ښوونځی مو له کوره لرې دی؟ کتاب یې واخیست، کتابچې یې راوړې.

۲ـ ملکي یا اضافي ضمیرونه:

چې د یوه شي ملکیت او تعلق وښیي، لکه:

(زما، ستا، د ده، د دې) د مفرد لپاره.

(زموږ، ستاسې، د دوی) د جمع لپاره.

مثالونه:

| | |
|---|---|
| ـ زما کتاب راکړه! | د ده کتاب مې ولوست. |
| ـ زموږ کتابونه راوړئ! | د دوی کتابونه نوي دي. |

_ ستا قلم ښکلې دی. تاسو کتاب ولوست؟
_ د ده خط ډېر ښه لوستل کېږي. د دوی کتابونه يې راوړل؟
د دې درس خلاص شو. دده کور چېرې دی؟

۳_ اشاري ضميرونه:
هغو ضميرونو ته وايي چې اشخاصو او شيزونو ته اشاره کوي او د نوم پر ځای استعمالېږي. په پښتو کې اشاري ضميرونه د شخص، عدد، حالت او واټن (فاصلې) له مخې ګردانېږي، لکه:
دغه _ دغو (لنډ يا نژدې اشارې لپاره)
هغه _ هغو (د لرې جمع او مفرد اشارې)
هوغه _ هوغو (د ډېر لرې جمع او مفرد اشارې لپاره)

مثالونه:
دغه نجلۍ ډېر درس وايي.
دغو هلکانو درسونه خلاص کړل.
هغه نجلۍ کور ته لاړه.
هغو نجونو له بازاره سودا راوړه.
هوغه ونه ډېره جګه ده.
هوغو خلکو خپل کارونه خلاص کړل.

۴_ استفهامي ضميرونه:
هغه ضميرونه چې د يوې پوښتنې لپاره کارول کېږي چې د شخص، زمان، ځای څرنګوالي او څومره والي له مخې لانـــدې ډولونه لري او ځينې يې دحالت له مخې اوړون مومي.
څوک (چا) چې د شخص يا (اشخاصو لپاره استعمالېږي، اصلي حالت يې څوک) او په غير اصلي حالت کې د (چا) په شکل راځي.
لکه: څوک وايي چې سبا ته به درس خلاص کړو؟
چا د خپل درس سره نور کارونه هم وکړل؟
کوم: کومه نجلۍ نن درس ته نه وه راغلې؟ _ چې د اشخاصو او شيانو پوښتنه کوي.
کوم هلک نن درس ښه تشريح کړ؟
څو: څو قلمونه دې له بازاره راوړل؟
څومره: دا مرغۍ څومره ښکلې ده؟ چې دا ضمير درجه، مقدار او اندازه ښيي.
ولې: ولې درس ته په وخت رانه غلې؟ د علت پوښتنه کوي.

۵_ پلوي يا سمتي ضميرونه:
هغه ضميرونه دي چې د يوه عمل يا فعل سمت او پلو د اشخاصو له پلوه وښيي، د اشخاصو له پلوه درې ښې لري.

ـ را، د متکلم لپاره، لکه: کتاب مې راکړه.
ـ در، د مخاطب لوری ښیي، لکه: کتاب در څخه غواړم.
ـ ور، د غائب لپاره راځي، لکه: توریپکۍ ورسره لاړه.

٦ـ مبهم ضمیرونه:
هغه ضمیرونه دي چې د یوه نا معین شخص لپاره راځي او دا نښې لري:
هر: لکه هر زلمی د وطن مینه په زړه کې لري. زموږ هره پیغله ملاله ده.
بل: بل څوک رانغله. بله نجلۍ داسې زیار کښنه نشته.
ټول: ټول هلکان هلته ناست وو.
همدرانگه (هېڅ، ځینې) مبهم ضمیرونه دي.
لکه: هیڅا ډوډۍ ونه خوړه. هېڅوک سمه خبره نه کوي. ځینې په خبرو کې دقیق وي، هېڅ خبره نشته، هېڅ دې ونه کړل.

٧ـ اشتراکي ضمیرونه:
هغه ضمیرونه دي چې د نورو ضمیرونو په شان د نوم پر ځای کارول کېږي. د لومړي دویم او دریم شخص د مفرد او جمع لپاره یو ډول استعمالېږي. دا ضمیرونه د جنس او حالت له مخې گردانېږي، لکه: شپون خپله رمه پیایي. ته خپل کارونه سرته ورسوه! خپلو همځولو سره مرسته وکړه!

مآخذونه: خویشکی، پوهنوال محمد صابر، پښتو غږ پوهنه او ویي پوهنه ـ دریم چاپ، ۱۳۸۷ کال.
زیور، پوهندوی زرغونه رښتین، پښتو گرامر، درسي لکچر نوټ، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، پښتو څانگه، ۱۳۶۸لمریز کال.

# پنځم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرليکونه: | د مطلبونوشرحه | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | کندهار | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي دا لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ کندهار به وپېژني.<br>ـ د کندهار د لرغونتوب په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ زده کوونکي به د کندهار د درس متن ولوستلی او وليکلی شي، نوروته به يې بيان کړای شي.<br>ـ د کندهار تاريخي ابدات به وپېژني، په ارزښت به يې وپوهېږي چې د هغو د خوندي ساتلو مفکوره په کې وروزل شي.<br>ـ زده کوونکي به د کندهار د خلکو او په کندهار کې د پيداوارو په اړه معلومات ترلاسه کړي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په يوازې توګه لوستل او ليکل، سوال او ځواب، ګروپي فعاليتونه. | |
| ۴ | **د تدریس وسيلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشير، قلم، کلمې (له کاغذ څخه د ښوونکي له خوا جوړ شوي کارتونه) د امکان په صورت کې د کندهار نقشه، د کندهار د ځينو تاريخي ودانيو عکسونه او . | |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسيلې:** | د ښوونکي د يادښت کتابچه، سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحريري پوښتنې. | |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعاليتونه:** | سلام اچول، د حال او احوال پوښتنه، د ټولګي ترتيب او تنظيم، د حاضرۍ اخيستل، د کورنۍ دندې اصلاح او د تېردرس ارزونه. | ٦ دقيقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ښوونکی دې د دغې پوښتنې په طرحه کولو سره د خپل درس عنوان ترلاسه کړي.<br>ـ تاسو د خرقې شريفې نوم اورېدلی؟ هغه په کوم ولايت کې ده؟ | ۴ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: | |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې د تېر او نوي درس اړیکې د ځینو لنډو پوښتنو په وسیله داسې ټینګې کړي چې له زده کوونکو څخه د نوي لوست عنوان پیدا کړي. | ـ زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنې ځواب کړي چې د نوي لوست عنوان ته ورسېږي. | ۳۵ دقیقې |
| ـ ښوونکی دې موندل شوی عنوان په تختې ولیکي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د نوی لوست متن په چوپه خوله ولولي. | ـ زده کوونکي دې د عنوان د پیداکېدو لپاره پوښتنو ته ځواب وواېي. | |
| ـ ښوونکی دې نوی لوست په پوره مینه په مناسب آواز ولولي او د درس په معنا او مطلب دې خبرې وکړي. | ـ زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم عمل وکړي، متن دې په چوپه خوله ولولي. | |
| ـ ښوونکی دې نوی لوست په زده کوونکو باندې په وار سره ولولي. | ـ زده کوونکي دې د ښوونکي لوستلو ته غوږ ونیسي او په معنا او مفهوم دې ځان پوه کړي. | |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او ځوابونه دې په پوره دقت سره واوري. | ـ زده کوونکي دې په لوستلو کې خپله ونډه واخلي. | |
| ـ ښووونکی دې د زده کوونکو ډلو ته لارښوونه وکړي چې د کندهار د مېوو، بندرونو ،راوړل شوي لغتونو او متضادو کلمو په هکله په بېلا بېلو موضوعګانو باندې ګروپي فعالیت سرته ورسوي. | ـ زده کوونکي دې په وار سره خپلې پوښتنې وکړي. | |
| ـ ښوونکی دې د ګروپونو د استازو په څرګندونو کې د تېروتنو او نیمګړتیاوو اصلاح ته پاملرنه وکړي. | ـ د هر ګروپ زده کوونکي دې په اړوند فعالیت کې خپله ورتیا وښیي. | |
| ـ ښوونکی دې د لنډو پوښتنو په ذریعه د نوي درس ارزونه وکړي. | ـ د زده کوونکو استازي دې د خپلو تېروتنو اصلاح ته توجه وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې ځوابونه ورکړي. | |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده وسپاري او ورنه دې وغواړي چې هر زده کوونکی د خپل ولایت په هکله یو څو کرښې مقاله ولیکي. | ـ زده کوونکي دې په کور کې د خپل ولایت په اړه مقالې ولیکي. | |

**د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

ختیځ: شرق

سویل: جنوب

لویدیځ: غرب

اړوندې: مربوطې

خړوب: سیراب

غاړې: د یخن په معنا، څنډې

سکوی: لاسي ګنډل

لېږدول: نقل کول، کوچ ورکول

ګڼ: زیات، انبوه

پلازمینه: پایتخت

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

خرقه شریفه د حضرت محمدﷺ چپنه ده چې هغه او د هغه د کورنۍ غړو په خپلو مبارکو لاسونو اوبدلې وه او د خپل عمر په پای کې یې اغوستله. پیغمبرﷺ وصیت کړی و چې زما له مرګ څخه وروسته دغه چپن عمرو اویس بن العامر القرني تــه ورکړئ. دا سړی د یمن اوسېدونکی و. کله چې حضرت محمدﷺ وفات شو حضرت عمرؓ او حضرت علي کرم الله وجهُ دا چپن هغه ته ورکړه. عمرو اویس بن العامر د خپل عمر تر پایه پورې دا چپنه اغوستله. کله چې مړ شو، بیا نوموړې چپنه د حرا په غار کې کېښودل شوه. ډېر کلونه هلته وه. بیا بغداد ته راوړل شوه. خود امیر تېمورګورګان له فتوحاتو څخه وروسته سمرقند ته انتقال شوه او یوه ودانۍ هم ورته جوړه شوه.

په ۱۰۷۴ کلونوکې ابو سید اوغلان د شرقي ترکستان حکمران له سمرقند څخه شرقي ترکستان ته راوړه او تر ۱۱۰۹هــ. پورې په بلخ کې وه. په شرقي ترکستان کې له دووتنو شیخ اقا محمد او شیخ نظر محمد سره وه. (۱۱۰۹ هــ .) محمد ضیا او شیخ محمد نیاز د بدخشان د یاربیګ حکمران هغه وخت غوښتل چې هغه د چترال له لارې هند ته ولېږدوي، خو والي پرې خبر شو او ویې ژغورله. بیا یې په بدخشان کې ورته ځای وټاکه. ودانۍ یې ورته جوړه کړه. ۳۵ کاله په بدخشان بیا وروسته مزار ته راوړل شوه. بیا له مزار څخه کابل ته راوړل شوه. وروسته ۱۱۸۲ هــ. کال قندهار ته یووړل شوه، خو تر قندهاره پورې ۵۰ ورځې پرې تېرې شوې. بیا په هغه جومات کې کېښودل شوه چې د قندهار لومړنی جومات و او د جومات امر هم احمدشاه بابا ورکړی و، د دې چپنې ځانګړنې دا دي چې د اوښ له نازکو وړیو څخه جوړه شوې ده، لستوني یې له قد څخه لنډ دي، رنګ یې اسماني دی، ځانګړې ځلا لري، د انسان د قد په تناسب سور لري، استر نه لري، مخکینۍ برخه یې سولېدلې ده.

# شپږم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونوسرلیکونه | د مطلبونوشرحه | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د افغانستان لویې لارې | |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولی شي لاندې موخې ترلاســـه کړي:<br>ـ زده کوونکي به وکولای شي چې د افغانستان لویې لارې وپېژني.<br>ـ د افغانستان لویې لارې به په خبرو اترو کې یو بل ته وښودلی شي.<br>ـ د افغانستان لویې لارې به وپېژني او متن به یې ولیکلی شي<br>ـ د ګران هېواد د لویو لارو په لرغونتوب به پوه او د ارزښت په برخه کې به یې نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>ـ د متن په لوستلو به د خبرو کولو وړتیا ترلاسه کړي.<br>ـ د متن په لوستلو کې به د سیالۍ په توګه خپله وړتیا وښیي.<br>ـ د لویو لارو په تجارتي ګټو به پوه شي. | |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | لوستل او لیکل، سوال او ځواب، ګروپي فعالیتونه. | |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د کلمو لیکلي کارتونه، (د امکان په صورت کې ټیپ ریکارډر، کمپیوټر، سلایدونه، فلش کارتونه) | |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې، د ښوونکي د یادښت کتابچه. | |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي ترتیب او تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. | ۶ دقیقې |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ـ ایا تاسو د تګ او راتګ له عادي لارو څخه پرته نورې لارې پېژنئ؟ | ۴ دقیقې |

| | د زده کوونکو فعالیتونه: | د ښوونکي فعالیتونه: |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ دقیقې | ــ زده کوونکي دې په پوره غور سره متن په چوپه خوله ولولي.<br>ــ زده کوونکي دې د کلمو د لوستلو طرز ادا او تلفظ ته پاملرنه وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې د متن په لوستلو کې خپله ورتیا وښیي او هم دې د متن په معنا کولو کې برخه واخلي.<br>ــ زده کوونکي دې په ګروپي فعالیت کې برخه واخلي او د ښوونکي له لارښوونې سره سم دې په ګروپ کې خپله ونډه ترسره کړي.<br>ــ زده کوونکي دې د خپلو ستونزو په هکله فکر وکړي او په جرئت سره دې پوښتنې وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې د فعالیت په ترسره کولو کې خپله علاقه مندي او لیاقت وښیي او د ځواب په موندلو کې دې برخه واخلي. | ــ ښوونکی دې د انګیزه یي پوښتنو په وسیله پیدا شوی عنوان په تختې ولیکي او د زده کوونکو پاملرنه دې د متن لوستلو ته په چوپتیا سره راواړوي.<br>ــ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب آواز ولولي او زده کوونکي دې د هغه په مفهوم او مطلب وپوهوي.<br>ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په وار سره وغواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست یوه یوه برخه دې په لوړ آواز ولولي او له پاتې کسانو څخه دې د لوست معنا او مطلب وپوښتي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ګروپونوویشي یو فعالیت دې په کار واچوي له یوه ګروپ څخه دې د افغانستان مشهور ښارونه او د مقابل ګروپ له هلکانو څخه دې یو تن هغه (ښارونه) په تختې ولیکي او په جملو کې دې استعمال کړي او د یوې سیالۍ په توګه دې دا فعالیت پرمخ بوځي په پای کې دې ښه جمله جوړونکی ګروپ او په هغه کې وړ زده کوونکي وستایي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته دا موقع ورکړي که چېرې کومه ستونزه یا پوښتنه و لري، نو پوښتنه دې وکړي.<br>ــ ښاغلی ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې دلوست په پوهېدو او استفادې سره د ۲۴ مخ د فعالیتونو دوهمه برخه (تورخم بندر د کومو ښارونو ترمنځ او په کوم ولایت کې پروت دی، سم ځواب په نښه کړئ) له یو بل سره له مشورې وروسته دې سم ځواب ورته پیدا کړي. |

| |
|---|
| **د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**<br>نغاړي: پیچي، بېلې بېلې موضوعګانې رانغاړي، یعنې بېلې بېلې موضوعګانې شاملوي.<br>لېوال: مشتاق، مینه وال<br>پیچومی: مخ په لوړه، کږی<br>غځېدلې: اوږد شوی، امتداد لري |
| **د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**<br>۱_ د افغانستان د مشهورو بندرونو نومونه واخلئ. (د تورخم ،حیرتان ، تورغونډۍ او شېرخان بندرونه)<br>۲_ تورخم بندر د کومو ښارونو ترمنځ او په کوم ولایت کې پروت دی؟<br>د جلال اباد، پېښور ترمنځ او په ننګرهار ولایت کې پروت دی.<br>۳_ د افغانستان مهم سوداګریز بندرونه کوم دي؟<br>تورخم، حیرتان بندر، شېرخان بندر او تور غونډۍ بندر. |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

که څه هم زموږ ګران هېواد افغانستان له ډېرو پخوا زمانو څخه له خپلو همسایه هېوادونو سره تجارتي اړیکې لري چې ښه بېلګه يې د وربښمولار ده، خو د سړکونو د نشتوالي له امله تجارتي مالونه د خرو، قچرو، اسونو او اوښانو په وسیله له یو ځای څخه بل ځای ته انتقالېدل، له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته افغانستان ته د موټرو له راتلو سره سم په ۱۳۰۴ هـ . ش. کال کې په افغانستان کې لومړی د کابل قندهار په سړک کار پیل شو. په ۱۳۰۷ هـ . ش. کال د کابل هرات سړک جوړ شو، له دې وروسته بیا د کابل جلال اباد سړک د لته بند د کنډو له لارې جوړ شو. د شیبر د کنډو یا شکاري درې له لارې د کابل پلخمري لويې لارې د موټرو پر مخ خلاصې شوې، خو د ۱۳۴۸ هـ . ش. څخه تر ۱۳۵۵ هـ . ش. کال پورې ۲۵۵۶ کیلو متره سړکونه په کانکریټي ډول جوړ شوي وو، اوس په خاص ډول هر سړک په ترتیب سره دروپېژنو.

۱_ د کابل تورخم سړک:

دکابل او تورخم سړک چې ۲۲۲ کیلو متره اوږدوالی لري په عصري ډول يې د جوړولو کار په ۱۳۳۵ هـ. ش. کال پیل شو او په ۱۳۴۴ هـ . ش. کال پای ته ورسېده. دا سړک د هند نیمې قارې ته، لوېدیځې اروپایي هېوادونو، امریکایي هېوادونو ته له افغانستان څخه په حمل او نقل کې زیاته برخه پر غاړه لري.

۲_ د کابل پکتیا سړک:

دا سړک ۲۲۲ کیلومتره اوږدوالی لري چې دجوړېدلو کارېې په ۱۹۶۵ م. کال پیل او په ۱۹۷۶ م. کال کې پای ته ورسیده، ستېو کنډو او تیرى يې دوه مهم کنډونه دي. دا سړک له لوګر، پکتیا، خوست څخه تېرېږي بیا د غلام خان بندر سره نښلول کېږي.

۳_ د شمالي لويه لاره:

څرنګه چې د مرکز او نورو مرکزي او جنوبي ولایاتو د نښلولو لپاره زیاته اړیتا لېدل کېږي، نو حکومت تصمیم ونیو چې د پخوانۍ لارې پر ځای يې يوه لنډه قیر شوې لاره جوړه کړی، دا لار د پخوانۍ لارې پر پرتله ۲۰۰ کیلومتره اوږده ده. دا سړک له جبل سراج څخه تر دوشي پورې ۱۰۸ کیلومتره اوږدوالی لري. دا پروژه په ۱۳۳۷ هـ . ش. کال کې پیل او په ۱۳۴۳ هـ . ش. کې پای ته ورسېده. دا لار د سالنګ د لويې لارې په نامه هم يادېږي.

۴_ د کابل کندهار سړک:

دا سړک ۴۸۳ کیلومتره اوږدوالی لري او د هېواد له مهمو سړکونو څخه شمېرل کېږي، دا لويه لاره د افغانستان لس مهم ولایتونه سره نښلوي. د دې سړک د پخېدو او عصري جوړولو کار په ۱۳۴۰ هـ . ش. کې پیل او په ۱۳۴۵ هـ . ش. کې پای ته ورسېده، دا سړک له پخواني سړک څخه ۲۴۰ کیلومتره لنډ دی، د کندهار او سپین بولدک سړک ۱۰۴ کیلو متره اوږدوالي لري دا هم په همدغه وخت کې په پاخه او اساسي ډول جوړ شوې دی چې آخري برخه يې د چمن د اورګاډي له لیکې سره نښتې ده.

۵_ کندهار، هرات او تور غونډۍ سړک:

له کندهار څخه تر تورغونډۍ پورې غځېدلی او اوږدوالی يې ۶۷۹ کیلو مترو ته رسېږي، د پخواني سړک پر نسبت ۹۰ کیلو متره لنډ دی، په افغانستان کې د حلقوي سړکونو زیاته برخه نیسي چې له هرات څخه پیل بیا له کندهار، غزني کابل، پلخمري، مزارشریف، شبرغان او میمنې څخه تېرېږي، وروسته بیا له هرات سره يو ځای کېږي.

۶_ د اسلام کلا (قلعه) سړک:

| |
|---|
| دا سړک ۳٦۰ کیلو متره اوږدوالی لري، د هېواد په شمال کې یې مهم ښارونه لکه پلخمري، سمنګان، خلم مزار، اقچه او شبرغان یو له بل سره نښلولي دي. دا سړک له پخواني سړک څخه ۴۰ کیلومتره لنډ دی، که په عمومي ډول ووایو موږ په دې ورو ستیو یعنې له جنګونو مخکې ټول ټال ۱۵۰۰۰ کیلو متره پاخه یعنې قیر شوي سړکونه درلودل چې د هغوله جملې څخه ۲۵۵٦ کیلو متره کانکرېټ شوي وو. |
| **ماخذونه:**<br>۱_ د دولسم ټولګي جغرافیه.<br>۲_ جغرافیه عمومي افغانستان.<br>۳_د نړۍ عمومي جغرافیه، دکتور رحیم مثري.<br>۴_ د افغانستان اقتصادي جغرافیه، ظریف تني وال، پوهاند حمیدالله امین. |

# اووم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونوسرلیکونه | د مطلبونوشرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د لیک نښې |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې لاندې موخو ته ورسېږي: <br> ـ دلوستلو،لیکلواودلیک نښوپه اړتیا به وپوهېږي. <br> ـ په ورځنیو لیکونو کې به له لیک نښوڅخه دکاراخیستلو په هکله معلومــات ترلاسه کړي. <br> ـ زده کوونکي به د لیک نښو د کارولو وړتیا پیدا او ګټې به یې نورو ته وویلای شي. <br> ـ زده کوونکي به په دې باوري شي چې د لیک نښومراعاتول د لیکونکي لیکل او لوستل سموي. <br> ـ زده کوونکي به د لیک نښو متن سم ولوستلای شي او پخپلو لیکنو کې به یې د تل لپاره وکاروي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعالیتونه. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د لیک نښو لیکلي کارتونــه، کــه امکــان ولــري سلایدونه، او فلش کارتونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې، د ښوونکي د یادښت کتابچه. |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ټولګي ته له ننوتو سره سم د سلام اچول، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي ترتیب او تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ښوونکی دې په تخته باندې یوه جمله ولیکي (ستا کور چېرې دی) د سوالیې نښه دې نه ورکوي، بیا دې له زده کوونکو څخه د جملې د سموالي په اړه پوښــتنه وکړي، بیا دې نورې پوښتنې طرحه کړي. |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی دې د تېر او نوي لوست ترمنځ داسې اړیکې رامنځ ته کړي چې زده کوونکي د نوي لوست سرلیک پیدا کړي، لکه: لیکنه څنګه وي؟ لیکنه په څه شي بشپړه او د هر چا د منلو وړ کېږي؟ هغه څه چې زموږ د نوي لوست سرلیک دی لیک نښې دي ، ښوونکی دې سرلیک په ښه خط په تخته ولیکي اوبیادې په لوړ اومناسب آواز ولولي او لغتونه دې له معنا سره پر تخته ولیکي . | زده کوونکي په نوبت ځواب ورکوي چې:<br>ـ ښه لیکنه هغه وخت بشپړه او د هر چا خوښېږي چې د لیک نښوپه واسطه بشپړه شوې وي .<br>ـ زده کوونکي دې دلوست سرلیک ته پاملرنه وکړي .<br>ـ زده کوونکي دې لوست په چوپتیاولولي اوځینې برخې چې پرې نه پوهیږي له ځان سره ولیکي .<br>ـ زده کوونکي دې په وار سره پوښتنې وکړي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکوته لارښوونه وکړي چې لوست په چوپتیاسره ولولي اوکومه برخه کې چې ورته روښانه نه وي هغه دې په نښه کړي . | ـ زده کوونکي دې د لیک نښو د ځایونو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته وخت ورکړي چې خپلې ستونزې حل اودڅلورم فعالیت جملې په لیک نښو بشپړې کړي. | ـ د زده کوونکو هره ډله دې خپل استازي ټاکي چې د ټولګي مخې ته راشي او د دوی کار نورو ته روښانه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې خپلونیمګړتیاووته پوره پام وکړي او ځانونه دې وپوهوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وویشي چې هره ډله د لیک نښو لکه: پوښتنه، خطاب، کامه، پای، شارحه د بېلا بېلو نښو په هکله څو جملې ولیکي. | ـ زده کوونکي دې د ښوونکي پوښتنوته په وار ځواب ورکړي او ځانونه دې و پوهوي. |
| ـ ښوونکی دې له ډلې څخه یوغړی تختې ته راپورته کړي چې دخپلې ډلې کارنوروته دتختې پرمخ وښیي . | |
| ـ ښوونکی دې د ډلو د استازو نیمګړتیاوې بشپړې کړي او هغوی دې خپلو تیروتنوته متوجې کړي چې په راتلونکې کې تکرارنه شي . | ـ زده کوونکي دې ډله ییز فعالیت سرته ورسوي. |
| ـ ښوونکی دې دلنډو پوښتنو په واسطه دنوي لوست (د لیک نښې) ارزونه وکړي او د ۲۹ مخ (۷) شمېره فعالیت دې سرته ورسوي . | ـ زده کوونکي دې د ښوونکي د لارښوونې سره خپلې نیمګړتیاوې سمې کړي. |
| ـ ښوونکی دې د زده کوونکو د کورنۍ دندو پر اړوند داسې سپارښتنه وکړي چې په یوه لیک کې دلیک نښې نښانې ولیکي اوبله ورځ دې ټولګي ته راوړي اوښوونکی دې وګوري اونیمګړتیا دې ورته په ګوته کړي . | ـ زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په برخه کې ځان و پوهوي چې څنګه یې ترسره کړي. |

**د ستونزمنو برخو تشریح کول:**

**ځنګه چې د کامه (،) ، ټکي (.)، شارحې (:)، پوښتنيزې (سواليې) (؟)، او د انصراف علامې (...) ارزښتناکې دي. دحيرانتيا يا ندا (غږ) (!) نښنه دې هم په خپل ځای کې وکارول شي.**

**دا نښنه سربېره پر دې چې د غږ او ندا په پای کې راځي، د حيرانتيا، خطاب، امر، آرزو او د خوشحالۍ په وخت کې هــم کارول کېږي. هغه عبارتونه، کلمې او جملې چې په پورتنۍ موخه ووېل شي د هغو په پای کې راځي او ليکل کېږي، لکه:**

**خويندو، ورونړو!، دلته راشئ! ګورئ! احتياط کوئ! وخت ډېر کم دی!**

**د غږ کولو برخه يې:**

**وروره! خورکۍ!، مورې!، دلته راشه!، ای خدايه!، ای زما د سترګو توره!**

**د امر برخه يې:**

**دلته راشه! چوپ شه!، راځه!، مه درېږه!**

**د آرزو برخه يې: کاشکې زه هم درسره وای!، کاشکې ما هم بوځې!**

**د حيرانتيا برخه يې:**

**توبه، توبه دومره ټګي!، وا وا څومره پوه هلک دی!، څومره ښکلی بڼ دی!**

**د ستاينې او افرين برخه يې:**

**افرين ستا په مېړانه!، ډېر اعلی!، څومره ښه!، افرين!**

**د افسوس او ارمان برخه يې:**

**دريغه! دريغه!، ارمان!، ارمان! چې زه هم درسره وای! ارمان!، ارمان! چې ما هم زده کړې وای! ارمان! ارمان! چې زه نه وم!**

**د خوشحالۍ په برخه کې: وا، وا،! څومره ښه ښکاري! وا، وا! ځنګه ښه خوي لري!، وا، وا! څومره ښکلی باغ دی!**

**د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

**۱ــ په ليکلو او لوستلو کې د ليک نښنو کارول څه ګټه لري؟**

**په ليکلو کې که ليک نښې په نظر کې ونه نيول شي، نو بشپړ مطلب نه شي افاده کولی او ليکنه به له نيمګړتياوو څخه ډکه وي.**

**۲ــ په لاندې جملو کې صفتونه دا دي:**

**ــ زما واسکټ تور دی. (تور) صفت راغلی دی.**

**ــ د احمد موټر سپين دی. (سپين) صفت راغلی دی.**

**ــ دا دېوال پلن دی. (پلن) صفت راغلی دی.**

**ــ محمود ځيرک هلک دی. (ځيرک) صفت راغل دی.**

**۳ــ په لاندې برخو کې ليک نښې وليکئ!**

**د ليکنې يو شمېر کيفيتونه، لکه پوښتنه (؟)، خطاب (!)، کامه (،) تمسخر (!)، پای (.)، شارحه (:) او نور د دغو ټکو پــه واسطه څرګندېږي.**

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

بې له تورو نه ځینې ټکي اونښې شته چې دلیک په لوستلوکې ځای لري اویوه جمله یاکلمه له اشتباه اوابهام څخه ژغــوري یعنې ددغونښواوټکو په لیکلوسره سرې پوهیږي چې په کوم ځای کې په کوم ټکي سرې دریږي اوکومه کلمه یاجمله له بلې سره وتړي .دتعجب ،ندا ،پوښتنې ،خطاب اونورو څرګندونه په همد غو نښو اوټکو کیږي چې په لیکلو کې خــورا زیــات اهمیت لري، دلته به یې په لنډ اومختصر ډول دروپیژنو.

کامه یاسرچپه واو(،) دانښه د کلماتو ترمنځ راځي لکه زماپه باغ کې منې ،ناک، زردالواوشفتالو شــته اوهمدارنګــه یــوه نیمګړې جمله له بلې نه دهمدغې نښې په وسیله بېلیږي .

(؛) دانښه له فاصلې زیاته وقفه راولي اودداسې جملوپه اخرکې وي لکه زه له چاسره بدنه کوم ؛ بدمې نه خوښیږي ؛نېکي مې خوښیږي ؛

(.)ټکی دانښه دیوې کاملې جملې په اخرکې راځي اودخبرې دتما میدو علامه ده لکه زموږ هېواد ډېرغرونه لري .

(:) دوه نقطې سرپه سر دهغې جملې یاکلمې په اخرکې وي چې شرحه اوتفصیل یې ورپسې وي لکه زړه مې غواړي: چــې یوخوړملګری ولر م. دیوښه موټرخاوند شم .

(ـــ)دا نښه په څو بېلا بېلو ځایونو کې استعمالیږي اودمعترضوجملود ښودلو لپاره راځي لکه هغه ورځ دې خدایﷻ بیا نــه راولي – په ما باندې څومره وغمېده چې ته رانه خوابدی شوې .

سوالیه (؟) دانښه دسوال اوپوښتنې علامه ده، دهرې جملې په اخرکې چې دغه نښه وي هغه داستفهام معنالرونکې ده . کوم باغ ته ځې؟ عزیزجان درس وایې؟

(!) ندایه: دانـــښه دخطاب، تعجب، تحسین او افسوس لپاره ده لکه :ښاغلوملګرو ! دوستانو ! پورته شئ! خپلې خاورې ته خدمت وکړئ !

( ) د دغسې دوو لیندکیو ترمنځ هغه توضیح یامعترضه جمله لیکې چې ډېرزیات اهمیت نه لري اوحذفول یې جملې ته څه زیان نه رسوي لکه :زما ملګری (احمد ) راغی ؛ ستا ورور (محمود) له مانه دوه کتابونه وړي دي .

[ ] دانښه هلته کاریږي چې په یوه معترضه جمله کې بله معترضه جمله یاکلمه راشي نودغه دوه جملې داسې لیکي : کــه رښتیاووایم[خدایﷻ مې دې غاړه نه بندوي ]

(( )) دانښه هغه وخت په کاریږي چې یوعبارت له کوم کتاب څخه رانقلوي یاکومه مقوله راوړي نوپه دغوکرښو کې لیکل کیږي .لکه زموږ رسول پاک ویلي دي (( دوطن مینه دایمان جزدی))

(....) څوټکي څنګ په څنګ ابښودل دخبرو دقطع کولو اودځینو کلمو دنه لیکلو علامه ده، لکه زماپــه کتــابتون کــې ددغوعلومو کتابونه شته، لکه صرف ،منطق، اوادبي ....

(×××) دانښه چېرته چې دیوې مقالې یوه برخه تمامه شي اوبله برخه شروع کیږي نوددواړو برخو ترمنځ دغه نــښه یعنــې ستوري لیکي چې یوه برخه له بلې نه بېله شي .

**ماخذونه:**

لیکوالي، املاء او انشاء، ګل پاچا الفت، پښتو ټولنه، دولتي مطبعه.

پښتوپښویه: دوکتورمجاوراحمدزیار.

# اتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د ناروغ پوښتنه |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي.<br>ـ زده کوونکي به د ځینو ناروغیو په هکله پوه او د ناروغۍ په وخت کې به د پوښتنې په ضرورت وپوهېږي.<br>ـ له ناروغیو څخه به د ځان ژغورنې لارې چارې وپېژني.<br>ـ د ناروغ د پوښتنې متن به ولوستلی او ولیکلی شي.<br>ـ په محاوره کې به له ځینو نوو کلمو سره اشنا او په ورځنیو خبرو کې به یې وکاروي.<br>ـ زده کوونکي به د محاورې له لوستلو سره د خبرو کولو مهارت پیاوړی کړي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې ډول لیکل او لوستل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز کار او خبرې اترې. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، قلم، د کلمو لیکلي کارتونه له امکان سره په سلاید کې د ناروغ ښودل او پوښتنه کول. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | د ښوونکي د یادښت کتابچه، پوښتنې او ځوابونه، دوه کسیزه خبرې اترې. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام او د احوال پوښتنې، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي ترتیب او تنظیم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ایا تاسې یوازې د خوښیو او خوشحالیو په وخت کې له دوستانو سره لیدنه کوئ؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د ز ده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د تېر او نوي لوست اړیکې داسې پیدا کړي چې له زده کوونکو څخه د نوي لوست سرلیک ترلاسه کړي.<br>ـ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک د پوښتنو په ترڅ کې پیدا کړي،اوهغه دې په تخته ولیکي او زده کوونکو ته دې لوست په مناسب آواز ولولي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لوست په پټه خوله له ځان سره ولولي.<br>ـ ښوونکی دې نوی لوست په زده کوونکو په وار سره ولولي او د پیچلو کلموپه تلفظ او معناکې دې ورسره مرسته وکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې په لاندې جملو کې صفتونه په نښه کړي.<br>ـ د کوهي اوبه په دوبي کې یخې او په ژمي کې تودې وي.<br>ـ د ګلاب ګل سور او د نارنج ګل سپین رنګ لري.<br>ـښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپلو ګروپونو کې د شریف او اکبر خبرې اترې له هر ګروپ څخه د دوو تنو په واسطه د ټولګي مخې ته د سوال او ځواب په ډول ووایي او پاتې کسان دې دا لغتونه په جملو کې وکاروي: نیمګړی، ټولنه، ټولنیز، روغتون.<br>ـ ښوونکی دې د ۳۲ مخ (۵) شمېره فعالیت په زده کوونکو سرته ورسوي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي چې دخپلو ناروغانو د پوښتنې په اړه څو کرښې ولیکي او بیا یې سبا ته په ټولګي کې ولولي. | ـ زده کوونکي دې د تېر لوست په باره کې معلومات وړاندې کړي، د نوي لوست سرلیک (د ناروغ پوښتنه) دې ورته ووایي.<br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي لوستلو ته په پوره پاملرنې غوږ ونیسي.<br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم لوست په چوپتیا و لولي.<br>ـ زده کونکي دې په وار سره نوی لوست ولولي د کلمو تلفظ ته دې متوجه او معنا دې په کتابچو کې ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې د ستونزمنو کلمو پوښتنه وکړي او د پوښتنو ځوابونه دې په کتابچو کې ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې د هرې ډلې څخه دوه دوه تنه د ټولګي مخې ته د خبرو اترو لپاره وټاکي او د ناروغ پوښتنه دې عملي وښیي.<br>ـ زده کوونکي دې د فعالیت په ترسره کولو کې برخه واخلي.<br>ـ زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په ترسره کولو کې پوره پام وکړي چې په کور کې یې ترسره او بله ورځ یې د ټولګي مخې ته ولولي. |

**په متن کې د ستونزمنوبرخو توضیح کول:**

ـ روغتون، یوه مرکبه کلمه ده د روغ او تون له ترکیب څخه ، چې د روغېدو د ځای معنا ورکوي.

ـ له یوه زړه نه بل زړه ته لار وي. دا یوه مروجه اصطلاح ده چې د زړونو د یووالي مفهوم لري، یعنې کوم اخلاص او لورینه چې په یوه زړه کې د چا لپاره موجوده وي، په همغه شان یې د هغه له خوا غبرګون ښودل کېږي.

ـ نیمګړی: ناتمام

ـ ټولنه: اجتماع

ـ ټولنیز: اجتماعي

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې صفتونه په نښه کړي!

ـ د کوهي اوبه په دوبي کې یخې او په ژمي کې تودې وي.

یخې (صفت)، تودې (صفت)

ـ دګلاب ګل سور او د نارنج ګل سپین رنګ لري.

سور (صفت)، سپین (صفت)

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د ناروغ پوښتنه کول د اسلام له نظره مستحب دي، ځکه رسوال اللهﷺ خپلو اصحابو کرامو ته د مریضانو د پوښتنې کولـــو امر کاوه، رسوال اللهﷺ د ناروغانو په هکله ډېر څه ویلي دي اوفضیلتونه یې بیان کړي دي چې موږ یې دلته یو څو نمونې وړاندې کوو:

ـ په یوه حدیث شریف کې راغلي دي، کله چې کوم مسلمان ورور د بل مسلمان ورور پوښتنې لره ورځي، نـــو یـــو آواز کوونکی له آسمان څخه آواز کوي، ته ډېر مبارک یې، ستا راتلل مبارک دي، تا په دې کار سره د ځان لپاره په جنت کـــې ځای تیار کړ. په بل ځای کې وایي، کله چې څوک د ناروغ پوښتنې لره ورځي، نو باید د ځان لپاره د څه غوښـــتنې دعـــا وکړي د ناروغ غوښتنه د خدایﷻ په مقابل کې داسې ده، لکه د ملایکو دعا.

رسول اللهﷺ به چې کله د کوم ناروغ پوښتنې ته ورغی، پوښته به یې ترې کوله؟ طبیعت دی څنګه دی؟ بیا به یـــې تـــسلي ورکوله او ورته فرمایل به یې: مه بې حوصلې کېږه، څه نشته، دا ناروغي ستا لپاره د ګناهونو د بخښنې او معـــذرت لامـــل ګرځي. په بل حدیث شریف کې راغلي دي چې یو مسلمان په بل مسلمان پنځه حقونه لري. (۱) دا چې کله مریض شي نو پوښتنې ته به ورځي. (۲) کله چې پرنجی ورشي، نو یرحکم الله به وایي. (۳) کله چې دعوت ورکړي، دعوت به یې مني. (۵) کله چې یو مسلمان ورور مړ شي، نو جنازې ته به یې ورځي.

او په بل ځای کې راغلي دي چې کله کوم مسلمان د بل مسلمان پوښتنې لره ورځي، نو که وس یې وي، باید له ځان ســـره یوه اندازه تازه مېوه وروړي او که وس یې نه و، نو چې کله د مریض کور ته ورغی،نو د مریض ترڅنګ دې کښېني او هغه ته باید په ډېرو خوږو الفاظو سره تسلي ورکړي چې د مریض سره د ښه کېدو هیله پیدا شي.

**مأخذ:**

سیرت النبي پښتو، ژباړه مولوي جانباز سرفراز.

# نهم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | متلونه |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>ــ د متلونو په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ــ په ورځني ژوند کې به د متلونو په کارولو او د هغو په اړتیاوو پوه شي.<br>ــ زده کوونکي به دا وړتیا پیدا کړي چې بایدکوم متل په کوم وخت وکاروي.<br>ــ په دې به باوري شي چې د متلونو پر ځای کارونه د انسان له پوهې، ځیرکـــۍ او ښه استدلال څخه نمایندګي کوي.<br>ــ زده کوونکي به وتوانېږي چې متن سم ولولي، وېې لیکي او د مفهوم په هکله یې خبرې وکړای شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل او لیکل، سوال او ځواب، ګروپي فعالیتونه. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د کلمو ځینې کارتونه، (د امکان په صورت کې ځینې فلش کارتونه، کمپیوټر او د متلونو ځینې نور کتابونه) |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، په تحریري توګه ځینې پوښتنې، د ښـــوونکي د یادښت او د نمرو ورکولو کتابچه. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام او روغبړ، احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي ترتیب او تنظـــیم، دکورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | په شفاهي ادبیاتو کې هغه لنډې او مؤجزې وېناوې چې ډېر لوی مطلب او مفهوم په کې وي په څه نامه پېژنئ؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ښوونکی دې د نوي لوست او تېر درس د اړیکو په نظر کې لرلو سره د څو هڅوونکو پوښتنو په وسیله عنوان مشخص او بیا دې په تختې ولیکي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي په چوپه خوله دمتن لوستلو ته راوبولي.<br>ــ ښوونکی دې د زده کوونکو د توجه په رااړولو سره بیا متن په لوړ او مناسب آواز ولولي، د مفهوم او د مطلب په هکله دې پوره توضیحات ورکړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته پوره موقع ورکړي چې هغوی په ډاډ سره خپلې پوښتنې وکړي او خپلې ستونزې له منځه یوسي.<br>ــ ښوونکی دې د ځینو ګوښه ګیرو زده کوونکو د ښې هڅونې لپاره دوی په وار سره د ټولګي مخې ته د متن د لوستلو لپاره راوغواړي او په تحسیني کلمو دې وستایي.<br>ــ ښوونکی دې دوه دوه تنه زده کوونکي وګماري چې تر مشورې وروسته د ۳۷ مخ فعالیتونه له (۱ ــ ۷) شمېرې پورې له یو بل څخه وپوښتي او بل تن دې د ټولګي په مخ کې سوال ځواب ووايي.<br>ــ ښوونکی دې د ځوابونو په برخه کې پوره پاملرنه وکړي، ځینې نیمګړتیاوې که موجودې وي هغه دې له منځه یوسي.<br>ــ ښوونکی دې د کورنۍ دندې په توګه دوی ته په دې ټینګار وکړي چې ځینې متلونه زده کړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي. | زده کوونکي دې په پوره پاملرنې سوالونو ته ځوابونه ووايي.<br>ــ زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم عمل وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او ځان دې پرې وپوهوي.<br>ــ زده کوونکي دې د متن لوستلو ته غوږ ونیسي. د مفهوم په اړه دې پوښتنې وکړي او ځوابونه دې په خپلو کتابچو کې یادښت کړي.<br>ــ زده کوونکي دې خپلې پوښتنې طرحه کړي او ځواب دې ترلاسه کړي.<br>ــ زده کوونکي دې په جرئت سره د متن ویلو ته خپله امادګي وښيي.<br>ــ زده کوونکي دې د پوښتنو په ځوابونو کې برخه واخلي او خپلې ستونزې دې له منځه یوسي.<br>ــ زده کوونکي دې خپلو نمیګړتیاوو ته پاملرنه وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې د کورنۍ دندې موضوع ولیکي او په خپلو کورونو کې دې بشپړې کړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

شفاهي ادب: هغه ادب چې لیکلې بڼه نه لري او سینه په سینه له یوه نسل څخه بل نسل ته راغلي وي او ویونکي یې معلوم نه وي.

ــ لفظي ښکلا: هغه ښکلا وې دي چې په لفظ پورې اړه لري، دغه ښکلا هم په نثري او هم په شعري مثالونو کې تطبیقېږي، لکه د تجنیس صنعتونه، قلب، ترصیح، سجع او نور

ــ معنوي ښکلا:د صنعتونوهغه ښایست دی چې په معنا پورې اړه لري لکه: طباق، لف و نشر، تجاهل عارف اونور صنعتونه.

ــ کنایه: په لغت کې د تصریح ضد ده او پټو خبرو کولو ته وايي او په اصطلاح کې دا ده چې متکلم یوه معنا په داسې لفظونو کې راواړوي چې د مطلوبې معنا لپاره وضعي معنا د دلیل حیثیت ولري، لکه:

د قبول ګوتې به پوه په ليمه کنبېږدي        که هجري په داهنر وايي اعجاز کړم

ګوتې په لېمه اېښودل يا د قبول ګوتې په لېمه اېښودل د منلو لپاره کنايه ده.

_استعاره: استعاره په لغت کې د يوه شي امانت غوښتل دي او په اصطلاح کې هغه مجاز دی چې علاقه يې تشبيه وي قراين او متعلقات هم ولري. په استعارې کې د متکلم اصلي غرض تشبيه ده، خود مبالغې په صورت کې افاده کېږي، لکه:

کجه کجه په نازدرومې فهم بويه        لاندې نه کړې ترقد م دمخ مارونه

په دې بيت کې (مارونه) د استعارې کلمه ده او زلفې ورسره تشبيه شوي دي.

ځانګړې: مشخص

جوګه: وړ،برابر

د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:

۱_ متلونه د ادب په کومې برخې پورې اړه لري؟

متلونه د شفاهي ادبياتو يوه ځانګړې او مهمه برخه ده چې د ولسونو په ولسي ادب کې ډېر مهم او غوره ځای لري او د هر ولس کلتور ترې څرګندېږي.

۲_ ايا منظوم متلونه هم شته؟

متلونه دوه ډوله دي منظوم او منثور.

ښوونکي ته اضافي معلومات

د هر ملت په شفاهي ادب کې متل (ضرب المثل) مهم ځای لري. متلونه هغه لنډې جملې دي چې د معنا په لحاظ پوره او د مفهوم په لحاظ عام وي. متلونه د خلکو هغه سپېڅلې او پاکې پوره معنا لرونکې لوېې او وړې جملې دي چې د ولس د ثقافت او فرهنګ، علم، پوهې او کړو وړو ژوندۍ نمونې دي چې د ولس د پوهې نمايندګي کوي.

متلونه له ډېر پخوا زمانو څخه موجود وو او زموږ د پلرونو اونيکونو غوره قيمتي او په تول تللې پخې ويناوې دي چې د لنډيو په شان خوله په خوله تر دې وخته رارسېدلي دي. د متلونو د ويلو تاريخ هم د لنډيو په شان معلوم نه دی او نه يې ويونکی معلوم دی، بلکې په هره زمانه کې ويل کېږي او د لنډيو په شان هر پښتون او هرې پښتنې ويلي دي. متلونه د ټولو پښتنو د خولو مرغلرې دي چې خواره واره د خلکو په سينو او ذهنونو کې پراته دي. د متلونو عبارت لنډ او خوندور مطلبونه په کې ځای شوي وي. د متلونو څخه د هر قوم د پوهې تجربې او فکري لوړتيا اندازه معلومېږي، ځکه چې متلونه هغه پخې ويناوې دي چې له ډېرو تجربو وروسته لاس ته راځي. پښتانه متلونو ته ډېر اهميت ورکوي.

هر متل په خپل ځای کې د کانې د کرښې په شان ښکاري او هغه يو پوخ او غټ دليل بولي. د پښتنو په هره سيمه کې ډېر زيات متلونه شته او هر متل ځانګړې او خپلواک مطلب لري. يا په بل عبارت متلونه د يوې پېښې او واقعې لنډيز دی، د متلونو پېژندنه دوې خواوې لري، يو دا چې د ويلو اصلي ځای سړي ته معلوم شي او بل دا چې د استعمال ځای يې وپېژندل شي. لومړۍ معنا يې حقيقي او دوهمه معنا يې مجازي ده مثلا: دا متل، لاس چې مات شي غاړې ته لوېږي چې حقيقي معنا يې هم موجوده ده، ځکه چې د چا لاس مات شي، نو غاړې ته ځي او مجازي معنا يې داسې ده چې يو بې وزله او ناتوانه انسان د خپل ځان او بچو غم پر خپل کوم بل مشر ورورياخپلوخپلوانواچوي، خو متلونه د موضوع په لحاظ مختلف شکلونه لري، اجتماعي، انتقادي، فکاهي، سياسي، اخلاقي، فلسفي او داسې نور او د فورم په لحاظ هم مختلف شکلونه لري، خو په پښتو کې موږ درې ډوله متلونه لرو.

الف: منثور متلونه، هغه متلونه دي چې نه وزن او نه قافيه لري او نه سجعه ولري.

| |
|---|
| يوازې ساده بسيطې جملې ولري، لکه په دې متل کې.<br>د زوی په ځوانۍ مور له سره ځوانېږي.<br>ب: منظوم يا سجع لرونکي متلونه:<br>دا هغه متلونه دي چې په پای کې يې سجعه مراعات شوې وي، لکه په لاندې مثال کې،<br>جنګ سوړ شو، ميری تود شو. چې لاړ شې تر بلخه، درسره به وي خپله برخه.<br>ج: منظوم متلونه:<br>دا هغه متلونه دي چې علاوه پر سجعې وزن او قافيه هم ولري ، لکه:<br>بې زحمته راحت نشته زما وروره، که راحت غواړې زحمت درلره بويه<br>سل روبي پور که د اختر شپه پر کور که يو زوی په کابل لوی که<br>امير چې ظالم کار وي اور بل په تول ديار وي<br>بد به دې په زړه لرمه سلام به دې په خوله لرمه |
| **مأخذونه:**<br>ادبي فنون (بديع او بيان) مؤلف: پوهنمل محمد اقا شيرزاد، ۱۳۸۴ هـــ . ش.<br>په پښتوادب کې متل . مؤلف داورخان داوددچاپ کال ۱۹۹۰ع<br>پښتومتلونه : مؤلف محمدين ژواک دچاپ کال ۱۳۸۲ هـــ. ش |

# لسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونوسرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | ځیرک قاضي |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به وکولی شي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>ـ زده کوونکي به د کیسې په اصلي مفهوم وپوهېږي.<br>ـ زده کوونکي به د کیسې په لوستلو سره دا وړتیا پیدا کړي چې د حق او ناحق توپیر وکولای شي.<br>ـ زده کوونکي به د کیسې نه په الهام اخیستلو سره د حق او حقیقیت پلویـــان شي.<br>ـ زده کوونکي به د اړوندې کیسې ارزښت ملګرو او د کورنۍ غړو تـــه بیـــان کړای شي.<br>ـ په زده کوونکو کې به د ښه قضاوت او فکر کولو استعداد وروزل شي.<br>ـ زده کوونکي به په کیسه کې له نوو کلمو سره اشنا شي.<br>ـ په زده کوونکو کې به د کیسې په لوستلو سره د کیسو لوستنې علاقه پیـــدا شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل، په یوازې توګه لیکل، سوال او ځواب، ګروپي فعالیتونه. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر، مارکر، د امکان په صورت کې د کلمو لیکـــل شوي کارتونه، چارتونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، عملي کار، ګروپي کار، شفاهي پوښتنې، کورنۍ دنده. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ـ لومړني فعالیتونه:<br>سلام ورکول، د حال احوال پوښتنه، د ټولګي پاکوالی، تنظـــیم او ترتیـــب، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې اصلاح او د تېر درس ارزونه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ـ ایا تاسې داسې کومه کیسه اورېدلې ده چې د چا ځیرکتیا څرګنده کړي؟<br>ـ کله مو د چا د رښتیاوو او دروغو معلومولو په برخه کې قضاوت کړی دی؟<br>ـ څوک دي چې په رښتیا او ځیرکتیا سره د حق او باطل ترمنځ قضاوت کوي؟ |

| د زده کوونکو فعالیتونه: | د ښوونکي فعالیتونه: |
|---|---|
| ــ زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. | ــ ښوونکی دې په تختې دعنوان تر لیکلو وروسته د درس متن په لوړ او مناسب آواز ولولي او د مفهوم په هکله دې خبرې وکړي. |
| ــ زده کوونکي دې په چوپه خوله متن ولولي او په درس کې دې ستونزمنې کلمې په نښه کړي او په نوبت دې پوښتنه وکړي. | ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې نوی درس له ځان سره په چوپه خوله ولولي. |
| ــ زده کوونکي دې په نوبت سره متن ولولي، بیا دې په وار سره پر مفهوم خبرې وکړي. | ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته موقع ورکړي چې د نوي لوست یوه یوه برخه په وار سره د ټولګي په مخ کې ولولي او د هغه د لنډ مطلب په برخه کې دې بیا خبرې وکړي. |
| ــ زده کوونکي دې د دندې په اجرا کې خپله ونډه وښیي. | ــ ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو ووېشي او داسې لارښوونه دې ورته وکړي : لومړي ګروپ دې د لغتونودمعناوو برخه. دویم ګروپ دې د لغتونو ضد معناوې، دریم ګروپ دې لغتونه د ګرامر له مخې او څلورم ګروپ دې لغتونه په جملو کې استعمال کړي، بیا دې د هر ګروپ استازی د خپل ګروپ نظر د ټولګي په مخ کې ولولي. |
| ــ زده کوونکي دې د ښوونکي د لارښوونې سره سم عمل وکړي، په ګروپونو کې دې ورسپارل شوي فعالیتونه سرته ورسوي.<br>ــ زده کوونکي دې د ارزونې پوښتنو ته ځوابونه ووایي. | ــ ښوونکی دې له ځو تنو زده کوونکو څخه د درس ارزونې لپاره ځینې لنډې پوښتنې وکړي او ټولو ته دې پکې برخه ورکړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

بوډا: هغه چا ته ویل کېږي چې ډېر عمر یې تېرکړی وي او مؤنثه بڼه یې بوډۍ ده.

خدایږو: په خدای قسم! د یادونې وړ ده چې ((ږو)) قسم خوړلو ته ویل کېږي.

ګڼې: ګوندې، ته یې قبول کړه، ته یې وشمېره.

تپوس: پوښتنه، سوال.

نهیلي: ناهیلي، ناامیده، مایوس، بې اسرې.

مُهر: ټاپه، د دفترونو مُهر.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

ــ د لاندې لغتونو ضد معناوې پیدا کړئ!

شخړې: (جنګونه او جنجالونه) ضد یې صلح

صادق: ضد یې کاذب، دروغجن

زلمی: زوړ

ژړا: خندا

هېڅوک: هر څوک

امانت: خیانت

ـ په متن کې راغلي لاندې لغتونه د ګرامر له مخې څه نومېږي؟
زلمی: عام نوم
بوډا: عام نوم
ونه: عام نوم
څوک: استفهامي ضمير
ستا: ملکي ضمير د دويم شخص لپاره(مفردمخاطب )
زما: ملکي ضمير د لومړي شخص لپاره(مفرد متکلم )
چېرې: د استفهام لپاره چې د ځای پوښتنه کوي
ولې: د استفهام لپاره چې د علت پوښتنه کوي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

وايي چې د سليمان(ع) په زمانه کې يوې ښځې له بلې ښځې څخه ماشوم پټ کړ، د دواړو ښځو ترمنځ پرې جنجال پيدا شو، بلاخره د ماشوم مور د وخت پاچا سليمان(ع) ته ورغله او عرض يې وکړ چې ای سليمان(ع) فلانۍ ښځې زما زوی پټ کړی دی. سليمان(ع) ژر تر ژره دويمه ښځه راوغوښته او له هغې نه يې د ماشوم په اړه وپوښتل، هغې ځواب ورکړ چې دا زما خپل ماشوم دی. سليمان(ع) د دې لپاره چې د ماشوم اصلي مور پيدا کړي، نو پر جلاد يې امر وکړ چې په خپلې تورې ماشوم دوه نيمه کړه او يوه يوه برخه يې هرې ښځې ته ورکړه.
کومه ښځه چې د ماشوم رښتينې مور نه وه، هغې وويل:
دا پرېکړه ډېره معقوله او عادلانه ده. پربېږده چې ماشوم په منځ غوڅ شي، خو د ماشوم اصلي مور چېغې کړې او په لوړآواز يې وويل:
د خدای(ج) لپاره زما زوی مه وژنئ، خير دی همدې ته يې ورکړئ.
سليمان(ع) پر دې وپوهېده چې د ماشوم رښتينې مور هغه ښځه ده، کومه چې د ماشوم ژوند غواړي او له وژنې سره يې مخالفه ده، نو امر يې وکړ چې ماشوم له غلې ښځې خپلې اصلي مور ته ورکړئ. د همدې عادلانه قضاوت له مخې سليمان(ع) ته د نړۍ د پاچاهانو په منځ کې د هوښيار پاچا لقب ورکړل شوی دی.

**کيسه**

وايي چې په يوه کلي کې له يوه کور څخه چا غلا وکړه، هغه کس چې غلا يې شوی وه د خپل کلي مشر ته ورغی او هغه يې له حال خبر کړ. د کلي مشر د خپل کلي ځوانان او سپين ږيري راټول کړل او ګرد چاپېره يې کېنول، مخ يې ورواړاوه او هغو ته يې په درنو خبرو او لارښوونو پيل وکړ، خلکو ته يې د خپلې وينا په ترڅ کې وويل:
ورونو! عزيزانو! زموږ د ګاونډي نظر ګل خان غلا شوې ده. ما ته غل معلوم دی، هغه زه پېژنم، د هغه په ږيره کې خلې دی. غله وار د واره خپل لاس ږيرې ته وروړ چې خلی لرې کړي، د کلي مشر ورته وويل پلانيه د دې لپاره چې ستا ابرو تويه نه شي، په کور او کلي کې رسوا نه شې، نو د نظر ګل خان مالونه به ژر تر ژره ورسپارې. غل وشرمېده، سترګې يې ځمکې ته ټيټې کړې او په خپل ناوړه عمل يې اقرار وکړ.
خودځيرک قاضي کومه ليکنه چې په کتاب کې راغلې ده، داليکنه دمنشي احمد جان ده، منشي احمد جان دنولسمې پېړۍ په وروستيو اودشلمې پيړۍ په سرکې دپېښو ر په نوښارکې اوسيده. وايي چې منشي احمد جان لوی عالم يوه اوپه پښتو کې ديوه رانه فکر اومسلک خاوند و، شعر يې کم ليدل کيږي، مګر دنثر ي ليکنو په لوی اوپراخ ميدان کې يې خپل نيلی ښه زغلولی دی اودپښتو دمعاصرو ادبياتو پرنثر کې ده ته ديو نوي سبک موسس اوجوړونکی وايي . دمنشي احمد جان دنثر

| |
|---|
| **ځانګړنه داده چې ده په خپل خواږه نثرکې ښکلي عبارتونه، لنډې لنډې جملې ، ښه اداء سلاست اوروانـــي، دلغاتوســـوچه والی، متلونه، راوړي دي. اوده په خپل ژوند کې داسې اثارولیکل چې په نثرکـــې لـــوی شـــهکارګڼل کیـــږي. د آثارونومونه یې په دې ډول دي .هغه دغه، دقصه خوانۍ ګپ، تاریخ افغانستان اوداسې نورکتابونه یې په پښتو ژبه لیکلـــي دي. احمد جان په ۱۳۳۰ هجري کال د۶۰ کلوپه عمر له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.** |
| **مأخذ:**<br>**دپښتو ادبیاتو تاریخ اوسنۍ دوره، پوهاند ډاکتر زیورالدین زیور۱۳۸۵ هجري کال چاپ.** |

# یوولسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د خپلواکۍ ورځ |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به وکولای شي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي:<br>ـ زده کوونکي به د لوست په پوهېدو سره د خپلواکۍ په مفهوم وپوهېږي.<br>ـ متن به په روانه توګه ولولي او په مطلب به يې وپوهېږي.<br>ـ د متن په لوستلو سره به زده کوونکي پوه شي چې افغانـــانو آزادي کلـــه او څنګه اخيستې ده.<br>ـ د متن په لوستلو به پوه شي او په دې به هم پوه شي چې په پښتو ادب کې د آزادۍ په اړه کومو شاعرانو شعرونه ويلي دي.<br>ـ په متن کې به راغلي لغتونه په جملو کې وکارولی او وليکلی شي.<br>ـ د متن په اړه به پوښتنو ته ځوابونه وويلی شي.<br>ـ په متن کې به ستاينومونه پيدا او په تختې به يې وليکلي شي.<br>ـ د متن د مفهوم په پوهېدو سره به د آزادۍ په ارزښت پوه او د هغې د ساتلو روحيه به په ځان کې ورروزلی شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په يوازې توګه د متن لوستل، سوال او ځواب، په يوازې توګه خبرې کول، ډله ييز کار. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشير، قلم، د امکان په صورت کې د ازادۍ د نوميالیو تصويرونه يا د ازادۍ د جګړو د ډګرونو انځورونه، کارتونه يا فلش کارتونه او نور. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، په تحريري ډول پوښتنې، د ښوونکي د ياداشت او نمرو کتابچه. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام او روغبړ، د احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل، د ټولګي ترتيب او نظم، د کورنۍ دندې کتل، د تېر لوست ارزونه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | تاسې د بند او اسارت پر ژوند څه ډول ژوند غوره او بهتر بولئ؟<br>لوی خدایﷻ چې موږ انسانان ازاد پيدا کړي یو، نو د څه شي ساتنه زموږ ملي او ايماني وجيبه ده؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د نوي او تېر درس د اړیکو په پام کې نیولو سره په انګېزه یي پوښتنو پیل وکړي او د عنوان تر پیدا کېدو وروسته دې هغه په تختې ولیکي او زده کوونکي دې په چوپه خوله متن لوستلو ته راوبولي. | ـ زده کوونکي دې پوښتنو ته پوره پاملرنه وکړي او په ځواب ویلو کې دې برخه واخلي. |
| ـ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب آواز ولولي، د مطلب په هکله دې پوره څرګندونې وکړي. | ـ زده کوونکي دې متن په پوره غور په چوپه خوله سره ولولي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره د متن د یوې یوې برخې لوستلو ته راوبولي او له پاتې کسانو څخه دې د متن مفهوم او د راغلو شعرونو معنا وپوښتي. | ـ زده کوونکي دې پوره او دقیق غوږ ونیسي او نیمګړتیاوو ته دې پاملرنه وکړي. |
| | ـ زده کوونکي دې په لوستلو کې برخه واخلي او د مفهوم په ویلو کې دې خپله وړتیا وښیي. |
| ـ ښوونکی دې لاربښوونه وکړي چې دوه دوه تنه د متن په دوو لیکو کې راغلي مربوطې مترادفې کلمې پیدا او په کتابچو کې دې ولیکي او په پای کې دې ځینې زده کوونکي هغه په تختې ولیکي. | ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه د فعالیتونو په ترسره کولو کې پوره برخه واخلي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته پوره موقع ورکړي چې د ۴شمېرې دفعالیتونو په برخه کې فکر وکړي او ځوابونه ووایي. په ورین تندي دې د هغو ځوابونه سره پرتله او د اړتیا په صورت کې دې ورسره مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي دې په پوره غور او فکر ځوابونه ووایي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې هر تن یې په متن کې راغلي ستاینومونه پیدا او په نښه کړي. | ـ زده کوونکي دې د ستاینومونو تر پېژندلو وروسته هغه په نښه کړي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته د کورنۍ دندې په برخه کې پوره سپارښتنه وکړي او د ازادۍ د جګړې په هکله دې یو لنډ مطلب ولیکي. | ـ زده کوونکي دې د کورنۍ دندې په برخه کې د ښوونکي له لاربښوونې سره سم عمل وکړي او په کورونو کې دې خپلې لیکنې وکړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح:**

ټیټ مې مه بوله غورځنګ راباندې مه کړه      زه په دې افتادګۍ کې لوی ګړنګ یم

شاعر په دې بیت کې هر بلواګر ته ګواښ کوي چې ماټیټ مه ګڼه، زه په دې ټیټوالي کې هغه لوی ګړنګ یم چې تا غوندې ډېر مغرور تاړاکګر او سر زوري مې له پښو غورځولي دي. د دې بیت شاعر شمس الدین مجروح دی.

په لومړۍ قطعه کې د ازادۍ یو ساعت د غلامۍ له سلو کالو ژوند څخه غوره او ښه ګڼلی دی، هر انسان ازادۍ ته د ژوند په بیه قایل دی په تېره افغانان چې له سر او مال پرې تېرېږي.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او پوښتنو ته ځوابونه:**

د ۵ فعالیت روښانول:

لوی جشن کې (لوی) ستاینوم (صفت) دی، ګڼو ننداړچیانو کې (ګڼ) صفت دی.

په ۶ فعالیت کې شپږ عام نومونه دا دي:

جشن، پلازمېنه، پوځ، پولیس، محصلین، ننداړچیان، لوبغاړي، لوژ، بزګران، هېواد

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

خپلواکی دپروردګار لوی نعمت دی او دژوندانه ستره نیکمرغي ده .انسان ازاد پیداشوی، نو ځکه له خپلواکی سره مینه لري، انسان ته خپلواک ژوند ترهرڅه غوره ښکاري . ازادي په توره اخیستل کیږي .اوپه پوهه اوتدبیرساتل کیږي. داچې زموږپه ګران وطن افغانستا ن باندې درې ځلې انګریزانو یرغل کړی، خو افغا نستان یې اشغال نه کــړای شــو، او لــه انګریزانوسره یې درې لویې جګړې وکړې، خوهیڅکله ښکیلا ک ته تسلیم نه شول اوپه پرله پسې سختوجنګونوکې یــې دهغه وخت انګریزي پوځو نه ښه وځپل، په پای کې دهېوادد دفاع په خاطرداعلیحضرت امیرامان الله په مشرۍ درې لوی جنګي مورچلونه جوړشول چې دامورچلونه عبارت دي له:

الف. دهېواد څخه ددفا ع ختیځ مورچل :دامورچل دښاغلي سپه سالارصالح محمد خان تر مشرۍ لاندې و. د خپلــواکۍ لپاره دجګړې تیاری داماني دولت دواکمنۍ له پیل سره ملګری وه، خو د اپریل په میاشت کې دافغاني ځو اکونو منظمــې اوپرله پسې هڅې غښتلې اوګړندۍ شوې. دافغاني ځواکونو لومړنی خوځښت دهېواد د ختیځ مورچل په لورترسره شو.سپه سالارصالح محمد خان چې دخپلومنظموځواکونو سره جلال اباد ته ورسیده ورسره ســم دســیمې اوولــسي ځواکونــو اودخپلواکۍ جګړې لپاره سرسپارونکو زلمو د انګلیسانو په وړاندې د جګړې تیاری څرګند کړ، د هېواد په ختیځ مورچل کې جګړه د ثور د میاشتې په درېیمه نېټه د افغاني ځواکونو په یوه ناڅاپي حمله پیل شوه .دابرید دومره ځواکمن اوګړندی و چې دانګلیسانوپه منځ کې یې دوېرې اوډارفضاواکمنه کړه اوپه دې ډول یې بشپړې ماتې په څېرپرشاتګ ته اړایستل او افغانانو د درنو جګړو په ترڅ کې دانګلیسانو پوځونه شاتګ ته مجبورکړل او دهغوی پاخه سنګرونه یې ترې ونیول. افغاني ځواکونو دیوې اونۍ جګړې په ترڅ کې انګریزي فوځو نه دننګرهارله پولوڅخه ترپېښوره پورې داسې وتنبول چې دبېرته راتګ توان یې نه درلود. خوانګریزي پوځونو ددې ماتې په مقابل کې د کابل اوجلال آباد سیمې ترسختې بمباري لانــدې راوستې چې په نتیجه کې یې زموږګڼ شمېرسپین ږیري اوماشومان شهیدان کړل اوداهوایي بمبارۍ دومره سختې وې چــې داماني دولت یوشمېرلوړپوړوکسانو له کابل څخه یومصؤن ځای ته د لېږد هیله وکړه، خــو اعلیحــضرت ددوی داډارن وړاندیز ونه مانه.اودجګړې لارښوونه یې له همدې کابل ښارڅخه دبري تر وروستیو شېبو بشپړه کړه.

ب:

. دهېواددفاع سهیلي مورچل: دسپه سالارمحمدنادرخان په مشرۍ داماني دولت له پریکړې سره سم ســپه ســالارمحمد نادرخان دخپلومنظمو ځواکونو سره داپریل په۲۴ نېټه ګردیز ته ورسیده .په ګردیز کې دلویې پکتیا له بېلابېلو برخو څخــه راغلوهېوادوالو دغزااوجهاد په نیت په ډول اواتېنونو سره دمرکزي دولت دځواکونو هرکلی وکړ اودجګړې ډګرتــه یــې دروانېدلو تیاری څرګند کړ. سپه سالارمحمدنادرخان اوورسره ځواکونه یې دګردیز په مرکزکــې جګــړې تــه دتیــاري اوځواکونودتنظیم اوترتیب په نیت د دوو اونیو لپاره پاتې شول، د ثور د میاشتې په ۱۴ نېټه په ټوله پکتیاکې دخپلواکۍ ګټلو نغاره ووهل شوه اودپکتیا اربکي اودسپه سالارځواکونه یوځای دانګریزانو پرمورچلونو ورپورته شول ،افغاني ځواکو نو او ولسي اربکیو د انګریزلښکروته داسې پرله پسې ماتې ورکړې چې انګریزانو یوپه بل پسې خپل عــسکرکوټونه لــه لاســه ورکول اوافغاني فوځونو په ډېره کمه موده کې له ټل نه تروانه پور ې منطقې فتحه کړې، خوهغه غوڅ اوپرېکنده برید چې د ثور د میاشتې په ۲٦ مه نېټه ترسره شو، نورنوغلیم ته توان پاتې نه شو او د جوزا د میاشتې په درېیمه نېټه یې له اماني دولت سره دمتارکې اواوربندغوښتنه وکړه .

دریم د هېواد دخپلواکۍ سهیل لویدیځ مورچل:دامورچل دسردارعبدالقدوس خان اعتماد الدوله په مشرۍ : دهېواد په سهیل لویدیځ کې هم دخپلواکۍ لپاره دافغانانوتودې ولولې ورځ په ورځ زیاتېدلې، اودخپلو اکۍ جګړې لپاره دسهیل لویــدیځې

ساحې د بېلابېلو سیمو اوسیدو نکي دتیارسۍ په حال کې دمرکز امرته سترګې په لارولاړوو. اعتمادالدوله له کابل څخه دکندهارپه لور له انګریزانو سره دجګړې لپاره دچارودسمون په لاروخوځیده .له کابله دروانېدو په حال یوڅودګو توپه شمېرکسان ورسره دبدرګې لپاره ملګري وو ، خو دوردګومیدان اوغزني ترسیمو پورې له اعتمادالدوله سره دایله جاري لښکروشمېر ترزرګونو کسانوزیات شو. کله چې د مې د میاشتې په دویمه نیمايي کې اعتمادالدوله کندهارته ورسید، ورسره د ایله جاري په زرګونو جنګیالیو سربیره دکندهار او شا و خوا سیمو نور په خپلواکۍ مین زلمي او د هېواد د خپلواکۍ د ساتلو لپاره سرسپارلي ځوانان دتیارسۍ په حالت کې د اعتماد الدوله له راغلو ځواکونو سره ملګري اوشمېر یې په لسګونو زرو کسانوته ورسیده. په کندهارکې دځواکونو ترتیب اوتیارۍ لا نه وه بشپړ شوې چې انګریزي پوځیانو له لوري په یوه ناڅاپي برید کې دسپین بولدک اوپښین یوشمېر افغاني ساتندویان ترحملې لاندې راغلل اوپه یوه نابېره جګړه کې افغاني فوځیان په شهادت ورسېدل. ددې خبرپه اورېدوسره دکندهاراوسیدونکو اوکندهارته دراغلوزلمیو په ګډون د انګریزانو سره جګړه شروع شوه اودافغاني زلمیانوبرید قوي و چې سردارعبدالقدوس خان ته یې دځواکونو دسمو ن اوتنظیم موقع نه ورکو له اوبې له ځنډه یې د مې د میاشتې په ۲۶ مه نېټه پرانګریزانو دلښکرکشي نغاره واورو له، اودجګړې ډول یې وغړاوه. افغاني زلمیو په چټکې سره د انګریزانوچونیو ته ځانونه ورسول. خوانګریزي فوځو نو مخکې له د ې چې دافغانې زلمیو دتو رې غړ یې ترغوږو شي، له خپلومورچوڅخه یې دتیښتې پښې سپکې کړې وې. خوافغاني فوځونو ددوی پخې مورچې یوپه بل پسې ترخپلې ولکې لاندې راوستلې، ان تردې چې دکوټې ښاریې دغلیم له منګولوڅخه خلاص کړ، نوپه دې وخت کې انګریزانواماني دولت ته د متارکې اواوربند خواست وکړ اوددواړو دولتونوترمنځ دجون دمیاشتې پردریمه نېټه داوربند اعلان خپورشو.چې ورسره جو خت دانګریزانوله خوا دافغانستان دخپلواکۍ دمنلو ډیپلوماتیک بهیرپیل شو .خوپاتې دې نه وې چې دهېواد دخپلوکۍ لپاره دافغانستان هره برخه دانګریزانو لپاره کلک سنګر و، خو دغه درې یې لوی اوقوي سنګرونه وو چې انګریزان یې دخپلواکۍ منلوته اړکړل، چې له نیکه مرغه یې ۱۹۱۹ میلادي کال د جون دمیاشتې په دریمه نېټه دافغانستان خپلواکي دانګریزانوله خوا داوربند اومتارکې ترنوم لاندې ومنل شوه، اودهېواد دسرسپارلوزلمو په سرښندنه افغانستان خپلواک شو.

مأخذونه:


ـ نوې پوهنه دتعلیمي نصاب دپراختیا د ریاست درې میاشتنۍ خپرونه.

ـ افغانستان درمسیرتاریخ میرغلامحمد غبار.

ـ افغانستان ازامیر کبیرتارهبرحضرت علامه عبدالحق مجددي، داکترفضل الله مجددي.

# دولسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبو نو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | اختر |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولی شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>۱_ د اخترونو پېژندنه،<br>۲_ د اخترونو په مراسمو پوهېدل،<br>۳_ په اخترونو کې د پخلاینې په ارزښت پوهېدل،<br>۴_ د اسلامي او ملي ورځو د نمانځلو په ارزښتونو باندې پوهېدل،<br>۵_ د اختر د متن سم لوستل، لیکل او نورو ته یې مطلب روښانه کول. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل او لیکل، سوال او ځواب، په یوازې توګه خبرې کول، ډله ییز فعالیت. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر، قلم او د امکان په صورت کې د اختر د مبارکۍ انځورونه، د لوی اختر د قربانۍ انځورونه او د نوو کلمو کارتونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | سوال او ځواب، شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې، د ښوونکي د یادښت کتابچه، شفاهي، لیکنې او د زده کوونکود فعالیت څارنه. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دکورنۍ دندې کتل او په یوه زده کوونکي باندې کورنی کار په تخته لیکل چې نور زده کوونکي خپلې دندې ورسره پرتله او اصلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | _ تاسې په کومو مراسمو کې نوي کالي اغوندئ؟<br>_ په کال کې څو د خوښۍ ورځې لرئ او په څه نامه یادېږي؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ــ ښوونکی دې د اختر کلمه چې د نوي لوست سرلیک دې د تختې پر مخ و لیکي او د زده کوونکو پاملرنه دې ورته راواړوي.<br>ــ د اختر متن دې په مناسب لوړ آواز ولولي او زده کوونکي دې د سم تلفظ لپاره چمتو کړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې سپارښتنه وکړي چې یو ځل یې په پټه خوله له ځان سره ولولي.<br>ــ یوه زده کوونکي ته دې بلنه ورکوي چې لوست په مناسب لوړ آواز د ټولګي په مخکې ولولي.<br>ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشي او هرې ډلې ته دې بلنه ورکړ ي چې د اختر متن په خپلو منځو کې ولولي، لومړۍ ډله دې د کوچني او دویمه ډله دې د لوی اختر په ځانګړتیاوو خبرې وکړي.<br>ــ د لومړۍ او دویمې ډلې یوه یوه غړي ته دې په نوبت بلنه ورکړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د خپل کار څرنګوالی نورو ته ووایي.<br>ــ زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې لومړي، دویم، دریم او څلورم فعالیت ته ځواب ورکړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې پنځم فعالیت په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ــ د شپږم فعالیت د سم ځواب پوښتنه دې وکړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې د اووم فعالیت لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې د خپلو کلو د اخترونو په هکله لس لس کرښې د کورنۍ دندې په توګه ولیکي. | ــ زده کوونکي په نوي لوست کې داختر کلمې ته متوجه کېږي او په کتابونو کې یې پیدا کوي.<br>ــ زده کوونکي کتاب ته ګوري او د کلمو سم تلفظ ته پام اړوي.<br>ــ زده کوونکي له لارښوونې سره سم لوست په پټه خوله لولي.<br>ــ زده کوونکي لاس پورته کوي او یو زده کوونکی لوست په مناسب لوړ آواز لولي.<br>ــ لومړۍ ډله د کوچني اختر او دویمه ډله د لوی اختر په هکله په خپلو منځو کې خبرې کوي.<br>ــ زده کوونکي لاسونه پورته کوي چې د خپلې ډلې په نمایندګۍ په نوبت یو یو غړی د ټولګي مخې ته راشي او خپل مطلب نورو ته روښانه کړي.<br>ــ زده کوونکي ځوابونه ووایي.<br>ــ زده کوونکي دې پنځم فعالیت په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>ــ زده کوونکي لاسونه پورته کوي او سم ځواب ورکوي.<br>ــ زده کوونکي دې لغتونه معنا او په جملو کې دې استعمال کړي.<br>ــ زده کوونکي دې په کورنۍ دنده ځان پوه کړي او بیا دې ولیکي. |
| د متن د ستونزمنو برخو روښانول:<br>په لوی اختر کې د اختر له لمانځه وروسته قرباني کېږي، کله چې الله تعالیﷻ حضرت ابراهیم‌عليه‌السلام ته امر وکړ چې خپل زوی اسمعیل‌عليه‌السلام قرباني کړي، دی په خپل کار کې بریالی شو او د اللهﷻ امر یې په ځای کړ، الله تعالی د اسمعیل‌عليه‌السلام په عوض له جنت څخه یو ښه پسه حلالولو ته چمتو کړی و او له هغه وخته تر اوسه د لوی اختر له لمانځه وروسته هر شتمن مسلمان یو څاروی حلالوي او په حلالولو کې یې دا تکبیر وایي:<br>الله اکبر، الله اکبر، لااله الاالله والله اکبر، الله اکبروالله الحمد. | |

**د فعالیتونو اړوند پوښتنې:**

۱_ مسلمانان په کال کې یو لو ی او یو کوچنی اخترلري.

۲_ کوچنی اختر د شوال په میاشت کې وي.

۳_ د لوی اختر د میاشتې نوم ذی الحجه دی.

۴_ صدقه فطر په کوچني اختر کې مخکې ترلمانځه څخه باید ورکړای شي.

۵_ لاندې لغتونه:

ځاښت: غرمې ته نژدې

زانګل: ټال خوړل

ټال: ګاز

غوزان: چهارمغز

سیالي: رقابت

پخلا: اشتي

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د اختر جمع یې اخترونه راځي او عید یې عربي کلمه ده، د بیا راګرځېدو په معنٰی ده او دا هغه د خوښۍ او خوشحالۍ ورځې دي چې په یو کال کې دوه وارې خدای ﷻ په مسلمانانو لورولي دي چې د کمکي او لوی اختر په نامه یادېږي. د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی، کله چې حضرت محمد ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړ، نو د مدینې منورې اوسېدونکو به دوه ورځې لمانځلې چې هغه عبارت وې له نوروز او د تلې یا میزان ورځې. خلکو ورته وویل چې دا هغه دوه د خوښۍ ورځې دي چې موږ ته د جاهلیت له زمانې څخه راپدې خوا په میراث پاتې دي او د لوبو او تماشو لپاره ځانګړې شوې دی، نو حضرت محمد ﷺ وفرمایل چې الله ﷻ ستاسو لپاره دا ورځې په دوه نورو غوره ورځو بدلې کړې دي چې هغه عبارت دي له کوچني اختر او لوی اختر څخه، خو پاتې دې نه وي چې دا زېری د هجرت په لومړي کال مسلمانانو ته د حضرت محمد ﷺ له خوا ورکړل شو.

**مأخذونه:**

۱_ الفقة الاسلامي پښتوترجمه

۲_ هدایه پښتوترجمه

۳_ سیرت النبي

# دیارلسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه: | ګڼه |
| --- | --- | --- |
| د افغانستان مېوې | **د لوست موضوع:** | ۱ |
| زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولی شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ زده کوونکي به د افغانستان مېوې وپېژني.<br>ــ زده کوونکي به د افغانستان د مختلفو مېوو په هکله معلومات ترلاسه کړي.<br>ــ زده کوونکي به د افغانستان د مختلفو ولایتونو په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>ــ زده کوونکي به د افغانستان د مېوو په ارزښت پوه او نورو ته به یې وویلی شي.<br>ــ زده کوونکي به د افغانستان د مېوو متن سم ولوستلی اوو لیکلی شي.<br>ــ زده کوونکي به په دې پوه شي چې کومې مېوې بهرنیو هېوادونو ته اســـتول کېږي؟ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ۲ |
| په یوازې توګه لوستل، سوال او ځواب، خبرې کول، یو کسیز فعالیت، ډله ییز فعالیت. | **د تدریس لارې:** | ۳ |
| کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د مېوو چارتونه، د نومونو کارتونه، انځورونـــه او د ښوونکي د یادښت کتابچه. | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | ۴ |
| سوال او ځواب، د ښوونکي د یادښت کتابچه، شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې او څارنه. | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | ۵ |
| ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د یو زده کوونکي په واسطه د کورنۍ دنـــدې لیکل چې نور زده کوونکي ورڅخه دندې اصلاح کړي. | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ٦ |
| زموږ او ستاسو وجود پرته له اوبو او غذا څخه نور څه شي ته اړتیا لري؟<br>تاسې له خپلو باغونو څخه څه حاصل اخلئ؟ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ۷ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ــ د نوي لوست سرلیک ((د افغانستان مېوې))دې په تخته ولیکي او د زده کوونکو پاملرنه دې ورته واړوي چې په خپلو کتابونو کې یې پیدا کړي. | ــ زده کوونکي دې د لوست سرلیک ((د افغانستان مېوې)) په کتابونو کې پیدا او ورته متوجه شي. |
| ــ لوست دې په مناسب لوړ آواز و لولي او زده کوونکي دې ورته متوجه کړي چې د کلمو سم تلفظ زده کړي. | ــ زده کوونکي دې د ښوونکي لوستلو ته پام ورواړوي او د کلمو سم تلفظ دې زده کړي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې لوست په پټه خوله له ځان سره ولولي. | ــ له لارښوونې سره سم دې زده کوونکي لوست په پټه خوله و لولي. |
| ــښوونکی دې نوی لوست په یو زده کوونکي د ټولګي په مخکې په لوړ آوازو لولي او تلفظ ته دې متوجې اوسي او بیا دې د څو مېوو نومونه واخلي. | ــ زده کوونکي دې لاس پورته کړي چې نوی لوست ولولي او د مېوو نومونه دې واخلي. |
| ــ په زده کوونکو باندې دې لومړی، دویم او دریم فعالیت ترسره کړي چې نور زده کوونکي پرې پوه شي. | ــ زده کوونکي دې په وار سره برخه واخلي او د فعالیتونو په باره کې دې معلومات ورکړي. |
| ــ د څلورم مهارت د ترسره کولو لپاردې زده کوونکو ته دنده ورکړي.چې خاص، عام نومونه او صفتونه د ې د ټولګي په تخته ولیکي. | ــ له تختې څخه د لیکل شوو صفتونو، خاص او عام نومونه په خپلو کتابچو کې لیکي. |
| ــ دوه زده کوونکي دې تختې ته را وغواړي چې یو پنځم فعالیت او بل شپږم فعالیت ترسره کړي. | ــ د پنځم فعالیت تش ځایونه دې ډک او د شپږم فعالیت سم ځواب دې په خپلو کتابچو کې و لیکي. |
| ــ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې د خپل هېواد د مشهورو مېوو نومونه او ځایونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بله ورځ دې یې په ټولګي کې ولولي. | ــ زده کوونکي دې په کور نی دندې ځانونه و پوهوي چې د بلې ورځې لپاره یې ترسره او په ټولګي کې ولولي. |

**د ستونزمنو کلمو روښانول:**

له متن څه ځینې صفتونه دا دي:

تازه، وچ، لږ، ډېر، ښه، پاخه، خواږه، لوی

عام نومونه: وطن، مېوه، ښارونه، لارې، غرونه، خلک

خاص نومونه: ننګرهار، کندهار، هلمند، تګاب، لوګر، پکتیا، وردک، لغمان، کونړ، هرات، تاشقرغان.

د فعالیتونو څرګندول:

ــ د هېواد مشهور انار په قندهار، تګاب او تاشقرغان کې پیدا کېږي.

ــ زموږ د هېواد یو شمېر مېوې، لکه: انار، انګور، خټکي، مڼې، پسته، بادام او نور بهر ته لېږل کېږي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

## د مېوو ګټې او غذايي ارزښت

دا چې زموږ ګران هېواد افغانستان يو کرنيز هېواد دی او په هر ولايت کې د نورو کښتونو ترڅنګ ډېر ښکلي او سمسور بڼونه شته چې له دغو بڼونو څخه هر کال زيات شمېر مېوې لاس ته راځي چې دغه مېوې دومره ښکلي او خوږې دي چې د خپل وطن له اړتياوو وروسته بهرنيو هېوادونو ته هم صادرېږي او په سلو کې له ۲۵ نه تر ۳۰ فيصده بهرني اسعار لاس تــه راوړي.

د افغانستان وچې او تازه مېوې په بهرني سوداګرۍ کې مهم رول لري، دا چې په د رسمي کتاب کې څومره مېوې معرفـــي شوي دي د هغو له جملې څخه موږ يوازې د مڼو په غذايي ارزښت خبرې کوو. مڼې د الله ﷻ د لوی طبيعت په ګڼ شـــمېر مېوو کې بې سارې او خوندورې ګڼل کېږي چې له پخوا څخه د نړۍ خلکو ته په زړه پورې او خوندورې ځرګندې شـــوي دي.

د کرنې ماهرينو د وينا پر بنسټ ويل کېږي چې د مڼو اصلي سرچينه له اروپا څخه پيل شوې او له هغه ځايه د نړۍ هر ګوټ ته رسېدلي دي. يعنې مڼه هغه مېوه ده چې له نورو مېوو څخه مخکې پېژندل شوې او له انساني تمدن سره نېغې اړيکې لري. همدارنګه مڼه د عشق، ښايست، نيکمرغۍ، روغتيا، پوهې او ځواک نښه ده، هغه وګړي چې په منظم ډول مڼې خوري. لـــه پوهې، ځواک او روغتيا څخه برخمن وي.

سربېره پر دې د هغو ناروغيو مخه هم نيسي چې د انسان په وجود کې د بېلا بېلو عناصرو د کمښت له امله پيداکېږي. مڼې لکه څنګه چې د مزې، اندازې او بوی له مخې توپير لري د ترکيب، معدني او کيمياوي موادو له مخې يې هم پکې تـــوپير موجود دی.

مڼې د انسان د پوستکي د تازګۍ او نرمۍ په خوندي ساتلو کې پوره ونډه اخلي او هغه ناروغۍ چې د پوســـتکي خارښـــت، وچېدو او بدرنګۍ لامل ګرځي، د مڼو خوړل ورته ګټه رسوي.

په مڼو کې چې کوم اسيدونه موجود دي، د خوړلو پر وخت د غاښونو مضره باکتېرياوې له منځه وړي.

هغه کسان چې فکري ځواک يې کمزوری وي د مڼې په خوړلو سره په زياته اندازه له دې ستونزې خلاصېږي، ځکه چې په مڼو کې فاسفورس، پروتين، کلسيم، اوسپنه، او $C, B6, B2, B1$ ويټامينونه موجود دي. پاتې دې نه وي چې هـــره ور ځ د يوې مڼې خوړل د روماتيزم، د زړه د ناروغيو او سرطاني مرضونو په مخنيوي کې مهم او اساسي رول لري.

افغانستان د مېوو له کبله مشهور دی، ځينې مېوې، لکه: بادام، پسته، مڼې، انګور او خټکي يې ډېر مشهور دي. هر کال يوه زياته اندازه مېوه ګاونډيو او اروپايي هېوادونو ته صادرېږي چې د هېواد په اقتصادي پياوړتيا کې ستره اغېزه لري. ځينې مېوې په پښتو شعر کې له لرغونې وخت څخه تر ننه پورې د کارونې وړ دي او پښتو شاعران يې د تشبه په توګه کاروي.

**مأخذونه:**

پوهاند محمد ظريف تنيوال.

پوهاند حميد الله امين.

# څوارلسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | شعر |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ــ زده کوونکي به وکولای شي چې د دې درس په لوستلو سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ شعر به وپېژني او په ارزښت به يې پوه شي.<br>ــ د شعر د اصولو په پېژندلو سره به د شعر په جوړښت او د شعر په تحلیل پوه شي.<br>ــ د شعر ډولونه به وپېژني له يو بل څخه به يې توپیروکړای شي.<br>ــ شعر به سم ولوستلی شي او هم به يې سم ولیکلی شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | لیکل، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، کتابچه، قلم، تباشیر او څو په کارتونو کې لیکل شوي بیتونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | د تېر درس ارزونه، د کورنۍ دندې اړوند پوښتنې، په لیکلو، لوستلو، ګروپي کار، پوښتنې او ځوابونه. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | لومړني فعالیتونه، سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخیستل د ټولګي او کورنۍ دندې کتل. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ــ خبرې، ویناوې او خپلې غوښتنې په څه ډول لیکنه کې ځایولی شو؟<br>ــ نظم او نثر څه شی دی؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د لوست سرلیک (شعر) په تخته ولیکي او لوست دې په لوړ او مناسب آواز ولولي.<br>ـ زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې په پټه خوله یې ولولي.<br>ـ ښوونکی دې بیا هر بیت بېل بېل ولولي او د هر بیت په مطلب دې خبرې وکړي.<br>ـ زده کوونکو ته موقع ورکړي چې خپلې ستونزې حل کړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي، هرې ډلې ته دې دنده ورکړي چې د هر بیت مطلب په خپلو منځو کې روښانه کړي. لاندې لغتونه دې په جملو کې راوړي، قناعت، اضطراب، وصف، شکل،ایل، عطا.<br>ـ ښوونکی دې د هرې ډلې استازي ته بلنه ورکړي چې د خپلو ډلو کار تشریح کړي.<br>ـ ښوونکی دې یو ځل بیا شعر په مناسب آواز په بېلو بېلو زده کوونکو لولي او نیمګړتیاوو.ته دې پاملرنه وکړي.<br>ـ ښوونکی دې د ارزونې په خاطر د بېلو بېلو بیتونو د مطلب پوښتنه وکړي.<br>ـ ښوونکی دې کورنۍ دنده زده کوونکو ته وسپاري. | ـ زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي او پوره پاملرنه دې وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې د هر بیت لوستل وڅاري او معنا دې زده کړي.<br>ـ زده کوونکي د ښوونکي لارښوونو ته پوره پام اړوي.<br>ـ زده کوونکي دې هر یو په نوبت سره پوښتنه وکړي او خپلې ستونزې دې حل کړي.<br>ـ زده کوونکي دې په هر بیت خبرې وکړي او مطلب دې روښانه کړي، ذکر شوي لغتونه دې په جملو کې وکاروي.<br>ـ یو یو زده کوونکی دې د ټولګي په مخ کې د خپلې ډلې نظریې نورو ته وړاندې کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د شعر په ویلو کې خپله ورتیا ښکاره کړي او خپلو نیمګړتیاو ته دې پاملرنه وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې کورنۍ دندې ته پاملرنه وکړي چې په مطلب یې وپوهېږي. |

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

نثر د مرغلرو شیندل او خورول دي، وزن او قافیه نه لري. نظم په لغت کې د مرغلرو پېیلو ته وایي یا هغه کلام ته ویل کېږي چې وزن او قافیه ولري.

په دې توګه په نورو نظمونو کې هم د هر بیت په جوړښت کې سیلابونه تلل کېږي، کله چې یوه مصرع له بلې سره په تول کې برابره شي نو هموزنه بلل کېږي.

قافیه په لغت کې وروسته یا څټ ته وایي. د ادب په اصطلاح کې د بیتونو د مصرعو وروستۍ کلمې چې په خپلو منځو کې ګډ توري او ګډ غږونه ولري د قافیې کلمې بلل کېږي، لکه په دې بیت کې:

قناعت راته عطا کړې زما ربه          ورک زما حرص و هوا کړې زما ربه

په پورتني بیت کې عطا او هوا د قافیې کلمې دي.

د شعر د نورو مصرعو په وروستیو کلمو کې عطاء، هوا، بلا، پیدا، را، ګویا، نجا، سودا، وینا، زما او دعا د قافیې کلمې دي چې په خپلو منځو کې ګډ توري او ګډ غږونه لري. د قافیې له کلمو څخه وروسته چې (کړې زما ربه) په یو شکل او معنا تکرار راغلي د ردیف په نامه یادېږي یعنې ردیف هغه کلمې دي چې د قافیې له کلمو څخه وروسته په یو شکل او معنا تکرار راشي ردیف بلل کېږي.

د پښتو شعر په باره کې ډول ډول نظریې څرګندې شوی دي،ځینې شعر یو وزن لرونکی مقفی او معنا لرونکی کلام بولي چې ځانته خاص جوړښت او شکل لري، ځینې بیا شعر له هغو لطیفو ، نازکو احساساتو او تخیلاتو څخه بولي چې د موزونـــو او رنګینو الفاظو په جامه کې راوړل شي او ځینې بیا شعر د یو هنر په توګه یوه برسېرنه پېښنه چې د ټولنې سره پیوستون ولري او دا لاندې خصوصیتونه په کې شامل وي. ۱_ شعر له ژبې څخه جوړېږي. ۲_ شعر مشخص شی دی نـــه مجـــرد. ۳_ موزون دی.خو په شعري چوکاټونو کې په ټولنیز ډول د (۱۳) په شاوخوا کې شعري فورمونه موجود دي، لکـــه: غـــزل، رباعي، قطعه، قصیده، مثنوي، مستزاد، مثلث، مربع، مخمس، مسدس، ترجیع بند، ترکیب بند، معشر او داسې نور چې اوس به يې هر یو په لنډ ډول درو‌پېژنو.

**غزل:**

غزل عربي کلمه ده له عربي څخه پښتو ته راغلی ده او غزل معمولاً هغه چوکاټ ته ویل کېږي چې مطلع ولري د سربیت یې مقفٰی او د بل هر بیت دویمه مسره هم هغه قافیه تعقیب کړي، د بیتونو شمېر یې له ۵ څخه تر ۱۵ پورې وي، د څپو شمېر یې معمولاً سره برابر وي، خو په پښتو کې له ۷ څپیز څخه تر ۱۵ څپیزو پورې غزلې شته، لکه د خوشحال بابا دا غزل.

| | |
|---|---|
| تـــوره چـــې تېرېـــږي خـــو ګـــوزار لـــره کنـــه | زلفې چې ولول شي، خو خپل یار لـــره کنـــه |
| ولـــې راتـــه وایـــې چـــې پـــه ښـــکلونظرمکړه | سترګې چـــې پیـــدادي خودیـــدارلره کنـــه |
| شیخ دې لمونځ روژه کازه به ډکې پیـــالې اخلـــم | هرسړی پیدادی خپـــل خپـــل کـــارلره کنـــه |

**څلوریزه (رباعي):**

رباعي هم هغه شعري فورم دی چې له عربي څخه پښتو ته راغلی دی. دا څلور مسرې لري له ځینو استثنايي حالاتو پرتـــه د رباعي لومړی بیت مقفي او دریمه مسره یې قافیه نه لري او په څلورمه مسره کې بیا همغه قافیه جوړیږي ، خو په پښتو کې د بېلا بېلو څپو په شمېر رباعي ویل کېږي، لکه دالاندې رباعي:

| | |
|---|---|
| سحرګه وه د نرګس لیـــمه لانـــده | څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده |
| ما ویل څه دي ښکلیه ګله ولې ژاړې | ده ویل ژوند مې دی یوه خوله خندیده |

**قطعه:**

قطعه هم په هغو فورمونو کې راځي چې له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلی او په پښتو شاعرۍ کې رواج شوې ده، لکـــه د څلوریزو په شان څلور مسرې لري، خو له رباعي سره یې تفاوت دا دی چې په رباعي کې لومړی بیت مقفٰی وي یعنې دواړه مسرې یې یو شان قافیه تعقیبوي اود دویم بیت دویمه مسره ورسره هم قافیه وي، خوپه قطعه کې دوه لومړۍ مسرې له قافیې ازادې اودوه وروستۍ مسرې یې په یوه قافیه جوړیږي لکه.

| | |
|---|---|
| چې پـــیلان ســـاتي پیـــداکړه لویـــه خونـــه | چـــې پـــیلان پـــرې ننـــوځي هـــسې ور |
| ګیدړ هر چېرې خپل وخت ساعت بـــدل‌کـــا | لوی ځنګـــل بویـــه زمـــري لـــره یـــا غـــر |

همداسې نورې بېلګې هم جوړیږي .

**بوللـــه (قصیده):**

قصیدې ته په پښتو کې بوللـــه وایي او قصیده عربي کلمه ده، په لغت کې قصد کړی شوي ته وایي، په عربي اصطلاح کې هغه شعردی چې د بیتونو شمېر یې له ۱٦ یا ۱۷ نه کم نه وي. قصیده په شکل او جوړښت کې له غزل سره چندان توپیر نه لري. د غزل د بیتونو شمېر له ۵ نه تر ۱۵ پورې او قصیده بیا له ۱٦ نه تر ۲۰۰ او یا له دې نه هم زیاتېږي.لکـــه دشـــیخ

د فلک له چاروڅه وکړم کوکار
زمولوي هرګل چې خاندي په بهار

هرغاټول چې په بيديا غوړيده وکا
ريژوي يې پاڼې کاندي تارپه تار

ډېر مخونه د فلک څپېړه شنه کا
ډېر سرونه کا تر خاورو لاندې زار

د واکمن له سره خول پرې باسي مړ شي
د بې وزلو وينې توی کاندي خونخوار

چې له برمه يې زمري رپي ځنګلو کې
له اوکو به يې ډاري تېر و جبار

هم يې غشي سکنې ډال د ژوبله ورو
رستمان ځينې ځغلا کاندي په ډار

چې يې ملاوې نه کړېږي په غښتليو
دا فلک پروکا څۀ کاري ګذار

په يوه ګردښت يې پريباسي له برمه
نه يې غشي نه ليندۍ وي نه يې سپار

څه تېری څه ظلم کاندې ای فلکه
ستا له لاسه نه دی هېڅ ګل بې له خار

په ويرژلو لور نه کړي په زړه کراړيه!
پر نتليو اور وې د غم ناتار

هېڅ روغي مې په زړه نه سته ستا له ځوره
بېلوي په ژړا ژړ مين له يار

له تېريو دې اوښکې څاڅي له اوريځو
چينې ژاړي په ورې ورې ستا له شنار

نه به لاس واخلې له ځوره نه به لوری
نه به ملا کړې له بې وزلو له ترار

نه به زړه وسوځې په هيچا باندې
نه به پريوځې له ګردښته له مدار

نه به وصل کړی مين له بل مينه
نه به درملي ټپونه د افګار

ستا له لاسه دي پراته ژوبل زګروي کا
هر پلو ته ټپي زړونه په ځار ځار

کله غوڅې کاندې مراندې د زړګيو
کله تېر باسې وګړي ډېر هوښيار

کله ټکې واچوې په نازوليو
کله خيرې کړې ګرېوان د نمنځې چار

کله غورځوې واکمن له پلازونو
کله کښېنوې په خاورو کې بادار

زمور پر زړونو دې نن بيا يو غشی وويشت
ودې ژوبلله په دې غشي هزار

پر سوريو باندې وير پرېوت له پاسه
محمد واکمن چې ولاړې په بل ديار

يو وار اسير سو په لاس د مير څمنو
انتقال يې وکړ قبر له بل وار

په سماو يې ودان آهنګران و
په ټيکنه و پر درست جهان او ښار

د محمود د ژوبلورو په لاس کښېوت
چې غزنه ته يې باتلی په تلوار

ننګليالیو له ره قيد مړينه ده ځکه
سه (سا) يې والوتله هسک ته پر دې لار

تر نړۍ يې غوره خاورې هديره کا
د زمريو په بيړيو کله وي څوار

په دې وير د غور وګړي تور نمري سول
په دې وير رڼا تياره سوله د ښار

ګوره څاڅي رڼې اوښې له دې غرونو
دا کړونګي ساندې لي په شورهار

نه هغه زرغا د غرونو د بيديا ده
نه د زرکو په مسا دی کتهار

نه غاټول بيا زرغونېږي په لاښونو
نه بامي بيا مسيده کا په کهسار

نه له غرجه بيا راځي کاروان د مشکو
نه را درومي غور ته بيا جوپې د شار

د پسرلي اوره تودې اوښې تويېنه
مرغلرې به نيسان نه کړي نثار

دا په څه چې محمد ولاړ له نړيه
په ويرنه يې سو غور ټول سوګوار

نه ښکاربړي هغه سور د سور په لتو — نه ځليږي هغه لمر پر دې ديار
چې به نجليو په نڅا په کې خندله — چې به پېغلو کا اتڼ قطار قطار
هغه غور په وير ناتار د واکمن کښېوت — هغه غور سو د جاندم غوندې سوراړ
لاس دې مات سه اى فلکه چې دې وکا — محمد غوندې زمرى د مړينې ښکار
شين زړګى فلکه ولې لا ولاړ يې — اى د غور غرونو په څه نه سوى و غبار
مځکې ولې په رېږدلو نه پرېوځې — لاندې باندې سه چې ورک سي دا شعار
چې زمري غوندې واکمن ځي له جهانه — چې څوک نه کړي په نړۍ باندې قرار
سخ په تا اى محمده د غور لمر وى — په نړۍ به نه وي ستا د عدل سار
ته پر ننګه وې ولاړ په ننګ کې مړ سوې — هم پر ننګه دې په ننګه کا ځان جار
که سوري دې په تګ وير کاندي ويرمن سول — هم به وياړي ستا په نوم ستا په ټبار
په جنت کې دى وه تون زموږ واکمنه — هم په تا دې وي ډېر لور د غفار

**مثنوي:**

مثنوي هغه ډول شعري فورم دى چې هر بيت يې په خپل منځ کې ګډه قافيه لري د بيتونو شمېر يې ثابت نه دى، په ټولو قافيه والو شعرونو کې مثنوي تر ټولو خلاص او لوى شعري فورم دى چې دلته يې يوه نمونه وړاندې کوو:

اى د پاک وطن فرزنده — اى د قام خوږه دلبنده
اى د نوي ژوند پيغامه — اى ارزو د وطن قامه
د افغان د باغ سنبله — د پښتون د بڼ بلبله
سبا ته مسؤول د کار يې — که ته مور يې، که ته پلار يې
ښه اخلاق او علم زده کړه — هله هله تلوسه کړه
علم هر چا له په کار دى — نه چې تش د نرو کار دى
ښځه، نر دواړه مسؤول دي — خو په ښه عمل مقبول دى
د حيات په هنګامه کې — د ژوندون په افسانه کې
دواړه يو بل ته محتاج دي — يوه بل ته د سرتاج دى
يو خاوند بل يې مېرمن ده — له قديمه، نه چې نن دى
يو به بل ته احترام کا — که باور د خداى په نام کا
د خداى دواړه بنده ګان دي — مکلف په ښه ګذران دي
يو چې بل ورنه جدا شي — لکه مات چې لاس د چا شي
زموږ خويندو شئ بېدارې — له خپل ځانه خبردار شي
قام زبون دى وطن خوار دى — دا زموږ لپاره عار دى
موږ ته نه ښايي خوبونه — نه مستي او نه عيشونه
لرې دا ظلمت کړئ — له وطنه جهالت کړئ
جهان واړه په موږ خاندي — مسخرې راپورې کاندي

نــــه خبــــر مـــــونږه لـــــه ځـــان يـــــوو نــــــه لـــــه حالـــــه د جهــــان يــــــوو
يــــو د بـــــل پـــــه ځـــان اختــــه يـــــو پـــــه اوهـــــــامو فريفتــــــه يـــــــوو
علـــــم و فـــــن تـــــه بـــــدګمان يـــــو ټـــول لـــــه يـــــو مخـــــې نـــــادان يـــــو
هـــــى ارمـــــان مــــې دا وطــــن دى دا د پـــــــلار نيکـــــــه مــــــدفن دى
هـــــر نعمــــت پـــــه کـــــې بـــــسيار دى بـــې لـــــه علمـــــه چـــې ډېـــر خـــوار دى
هـــــــى افـــــــسوس زمـــــــا وطنــــــه اى د ســــــــرو ګلـــــــــو ګلـــــــشنه!

تــــــه جنـــــت د دې جهـــــــان يـــــې!
خــــو افـــــسوس دى چـــې نــــن وران يـــې

مثلث:

هغه ډول شعري فورم دى چې هر بند يې درې مصرې لري او درې واړه مسرې يې سره متحدالوزنه وي او يو شـــان قافيـــه تعقيبوي. چې دلته يې دمثال په ډول يو ه نمونه راوړولکه :

| |
|---|
| راځه چې د وصـــال جـــوړه دنيـــا کـــړو پـــه دنيـــا کـــې |
| د ګـــــل پـــــه خاموشـــــى او د بلبلـــــو پـــــه نـــــوا کـــې |
| پيدا چـــې د خنـــدا نـــور افـــشانې کـــړو پـــه ژړا کـــې |
| تر هغه ګورو يو بل ته چې ورک شـــو پـــه يـــو بـــل کـــې |
| راځه چې يوه جـــوړه کـــړو جـــونګړه پـــه ځنګـــل کـــې |
| ډيوه د مـــشغولا شـــي زمـــوږ بلـــه چـــې ماښـــام شـــي |
| ماښـــام د لـــيلا لاس کـــې د شـــفق د ميـــو جـــام شـــي |
| بد ځان يې شي له پامه چې د ستورو پـــه مـــوږ پـــام شـــي |
| د مينـــــې پټپټـــــانې وي د ســـــترګو پـــــه ځنبـــــل کـــــې |
| راځه چې يوه جـــوړه کـــړو جـــونګړه پـــه ځنګـــل کـــې |

مستزاد:

مستزادهغه شعردى چې لومړۍ مسره يې اوږده اودويمه يې لنډه وي چې دلته دنمونې په ډول څو بيتونه راوړو.
شپه ددوشنبې ده چې نبي صاحب روان شو
تيرترلامکان شو
شپه ددوشنبې وه راته راغى جبرائيل
وېې کړه قال اوقيل
زه يم رالېږلى په جلتۍ سره جليل
پاڅيږې خليل
شاه نبي زمونږه لکه سروه خرامان شو
تېرترلامکان شو

ياداچې:

نه غوږ لرم چې واورم نه په خوله دخير ويل کړم          مدام منت پربل کړم

**(مربع):**

مربع هغه ډول شعري فورم دی چې هر بند يې څلور مسرې لري د لومړي بند څلور واړه مسرې يې په خپل منځ کې هم قافيه وي رديف پکې اختياري دی که د سر په مسره کې رديف راوړل شي، نو د لومړي بند په څلورو واړو مسرو کې يې راوړل حتمي دي لکه:

| |
|---|
| دريغـــــه نـــــوی عجـــــب وخـــــت دنوبهـــــاروای |
| شـــــگوفه هررنـــــگ گلونـــــه دگلـــــزاروای |
| لاس تـــــرلاس ســـــره نيـــــولي ماويـــــاروای |
| پـــــه مـــــزه مـــــزه خـــــواړه ويـــــل تکـــــراروای |
| يـــا وای ناســـت يـــا گرځيـــدای ســـره پـــه بـــاغ کـــې |
| معطـــــره وای دگلوپـــــه دمـــــاغ کـــــې |
| دوه پـــه دوه مـــو ســـره راز وای پـــه فـــراغ کـــې |
| هـــم مـــانع پـــه دواړو ســـترگو ړونـــد اغيـــاروای |

**(مخمس):**

د مخمس او مربع عمومي جوړښت تقريبا يو شان دی توپير يې دا دی چې مخمس کې تر مربع يوه مسره زياته وي يعنې دلته هر بند پنځه مسرې لري. د لومړي بند پنځه واړه مسرې يوه قافيه تعقيبوي او د نورو بندونو څلور مسرې په خپل منځ کـــې هم قافيه او د پنځمې مسرې قافيې د لومړي بند تابع وي له لومړي بند وروسته  کېدای شي. په څلورو مسرو کې بېل رديف راشي، خو پنځمه په قافيه او رديف کې د لومړي بند قافيې تعقيبوي.

**مسبع:**

مسبع، مثمن او معشر هم دغه ډول شعرونه دي، خو يوازې د مصرعو په شمېر کې توپير لري، يعنې د اشعارو بندونـــه پـــه مسبع کې اووه، په مثمن کې اته او په معشر کې لس مسرې لري چې د سر په بند کې د ټولو مسرو قافيه يو له بل سره يـــو ډول وي او په نورو بندونو کې نورې مسرې يو ډول قافيه لري يوازې د پای مسرې قافيه د سر د مسرې په قافيه جوړېږي.

**ترجيع بند:**

دا هغه نظم دی چې لومړی څو بيتونه وويل شي بيا ورپسې يو مقفٰی (قافيه لرونکې) بيت ورلوېږي او په دې ډول يـــو بنـــد جوړوي او بيا بل بند پيلېږي او بيا همدا مقفٰی بيت تکرارېږي. په ترجيع بند کې هر لومړي بيت مقفٰی وي، لکه د غزل پـــه شان او د بل هر بيت لومړی مسره بې قافيې وي او دويمه يې قافيه لري او د مطلع قافيه تعقيبوي. د بيتونو شمېر يې ســـره مساوي وي او ټولې مسرې يې متحدالوز نه وي او رديف پکې اختياري دی. چې دلته به يې څوبيتونه دنمونې په ډول وړاندې کړو.

ستاپرمخ پرتورو زلفو زه شيدا يم          صبح وشام په اه فغان په واويلا يم
په فراق کې دې تل خورم د ځيگروينې          صبروتوان مې بې تانشته مبتلا يم
نن فلک راباندې تېغ دجورو کېښ          له سرووينو ډک لړمون لکه حنايم

رقيبان راسره جنګ وجدال کاندي | په دربارکښې دې دسپيو مدعايم
غزاله غوندې وحشي راڅخه مشه | زه صياد دې ددیدن په تمنايم
که شل کاله دې مانې وي له مایاره | بېګانه مې هنوزمه ګڼه اشنايم

له اشنا مکړه مانې بې وفايي ده
چې سيځې مين بې اوره جدايي ده

غمازان چې روغې چارې کړي ويجاړې | خوارعاشق به څرنګ ستاپه وصل وياړي
چې احوال دفراقت په ژبه اورم | هغه دم مې وچوي په خوله کې ناړې
دلاله په دودله عمره ځګرخون يم | په ګوګل کښې مې تل وينې دي ولاړې
ياشبنم دی چه اوريږي په چمن کې | يابلبل دی دسحر پرګلو ژاړي
ګردغبار دې دکوڅې يم ولې دريغه | خيال دوصل دی لمن رااڅخه نغاړي
که هرڅو د تا مانې دی نن پخلا شه | دل سوخته اشنا دې راغی عذر غواړي

له اشنا مکړه مانې بې وفايي ده
چې سيځې مين بې اوره جدايي ده

راشه راشه ای زما دزړه مقصوده | ماغريب کړه په وصال سره خوشنو ده
تش ديدن دې په سرغواړم که مينده شي | لاس پرسريم پردنياله بله سوده
دوصال قدر زما زده چې مشتاق يم | داياز له قدره چا زده بې محموده
له ماتمه سياپوش لکه سکاره يم | ترليمه مې اوښې ځي دزړه له دوده
لکه زه يم تل دا ستا په درود و غم کې | بل څوک مشه هسې شان په غم الوده
په مانې مانې پرڅه زيبا نګاره | پيرمحمد غوند ې اشنا دې کړ نابوده

له اشنا مکړه مانې بې وفايي ده
چې سيځې مين بې اوره جدايي ده

**ترکيب بند:**

**له ترجيع بند سره صرف دومره توپير لري چې په ترجيع بند کې کوم بيت چې ورروسته تر هر بند راځي تکرارېږي. مګر په ترکيب بند کې ورروسته تر هر بند يو بل بيت چې بېله قافيه او معنا لري راوړل کېږي.**

**په ترکيب بند کې هم بايد د ټولو بندو د بيتو شمېر سره مساوي وي. د حميد د ترکيب بند يو څو بندونه دا دي:**

په منزل به يې سبا ګوره څوک مله وي | نه پوهېږم چې به ساد وي که به غله وي
په څه شان به شکسته زهير په زړه وي | له نغمې به يې د زړه نغمه په خوله وي
دم قدم به يې خولې د مخ په وله وي | رانجه کړي به يې چا خاورې د پله وي
سزاوار د هر ستم د هر پيغور يم | چې مې يار په سفر تللی زه پر کور يم
يا د ياره سره تللی په سفر وای | په هر ځای مې غوړولی پرې وزر وای
يا يې مړ د بېلتانه د غمه زر وای | يا په دواړو سترګو ټپ روند په نظر وای
که دا نه کېدای هر ګزه معتذر وای | خود په خود مې ځان وهلی په خنجر وای
هسې پاتې شوم تر يار پورې مخ توری | په جرګه د عاشقانو کې کوز ګوری

دا څه مینه محبت څه عاشقي ده | دا څه پت څه مروت څه صادقي ده
دم قدم دغا بازي منافقي ده | په مذهب د عاشقانو فاسقي ده
سراسر ناقابلي نالایقي ده | په ذمه مې د نګار ګناه باقي ده
چې مې یار په سفر تللی زه په کور یم | ګویا مخ په تبۍ تور او په خره سور یم

**ازاد شعر:**

**۱ــ هغه ډول شعر چې د دو دیزو شعري فورمونو په چوکاټ کې نه وي راغلی په بڼکلي ډول پکې یو څه بدلون راغلی وي، ځینې مصرې یې له قافیې ازادې، لنډې یا اوږدې وي، په نورو اکثرو مصرو کې قافیه راغلی وي، خو دا قافیه په ټولو مصرو یا بیتونو کې یو شان نه وي، لکه د اسحاق ننګیار دا شعر.**

**په آزاد شعر کې تر ډېره حده قافیه نه وي، یوازې وزن او آهنګ لري.**

**آزاد شعر**

ای ښکاري اشنادرته سلام کو م
پرښړده چې دابنکلې مرغۍ والوځي
لاړې شي جوړه جوړه ګلونه شي
ښکلي شي ښایسته شي امیلونه شي
واخلي په وزرونوکې تنکي بچي
وموښي سینوکې ګلالي بچي
سپینې سرې مښوکې زرکني بچي
پام کوه !
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه!
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم
پرښږده چې دا شنو جلګو کې وځغلي
پیغلې د هوسیو د دامان په لور
واړوي پیکي د شنه آسمان په لور
وخاندي راتاوې شي مستي وکړي
ورغړي نخرې وکړي خوښي وکړي
پام کوه!
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه!
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم
پرښږده د غونچو په لمن پرېوځي
زموږ د کلي باغ کې د سپرلي بلبل
زموږ د خمارونو شرابي بلبل
پرښږده چې په سرو مخوکو وبولي

زمورِ د بام د پاسه د سپرلو سرود
بڼ ته دغوټیو د ښکالو سرود
ځمکې ته د وریځو بارانو سرود
پام کوه!
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه!
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم
ګوره دا بې ژبې مرغان مه وله
نه چې یې کوم ووړ بچی بې موره شي
ته هم ګوره پلار یې او بچې لری
پیغله لور ښایسته لور ګلالي لری
درد لري، آرزو لري، زړګي لري
نو!
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه!

**مأخذونه:**
د پښتو شعر هندسي جوړښت، محمد اسمعیل یون اثر.
د پښتو ادبیاتو اوسنۍ دوره، زیورالدین زیور.
سیندونه هم مري، اسحاق ننګیال.

# پنځلسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبو نو سرليکونه: | د مطلبو نو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د سګرټو زيانونه |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې:** | د سګرټو په زيانونو باندې د زده کوونکو پوهېدل،<br>د سګرټو له کارونې څخه کرکه او ځان ساتل،<br>د سګرټو د روغتيايي او اقتصادي زيانونو څخه خبرېدل،<br>د سګرټو د زيانونو په هکله له کورنۍ او نورو ځوانانو سره خبرې کول. |
| | **د تدريس لارې:** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه او په يوازې توګه فعاليتونه. |
| ۴ | **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي:** | درسي کتاب، توره تخته، تباشير، کتابچې، قلم، د امکان په صورت کې د نــشه يي خلکو ځينې انځورونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسيلې:** | شفاهي ارزونه، د پوښتنو، لوستلو، ليکلو، ګروپي فعاليتونو، رقابتي فعــاليتونو او نورو په وسيله. |
| ۶ | **د زده کړې او تدريس فعاليتونه:** | لومړني فعاليتونه:<br>سلام ورکول، لوستل، ليکل، ترتيب او تنظيم، د حاضري اخيستل، د تېــر درس ارزونه، د کورنۍ دندې کتل. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | هڅوونکې پوښتنې:<br>ايا تاسې داسې کسا ن ليدلي چې ښخوده اوبې واکه پراته وي ؟<br>تاسې له نشه يي توکو څخه کوم توکي پېژنئ او د هغو په هکله څه معلومــات لرئ.<br>په دې توګه ښوونکی د دې ارزونه کوي چې زده کوونکي مخکې له درس څخه په دې هکله څومره معلومات او پوهه لري؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ــ د ښوونکي لــه خــوا د مــتن لوســتل او درس تــه د زده کوونکو د پام اړول اوترلوستلووروسته یې پــه مطلــب خبرې کول. | ــ د زده کوونکو پوره پاملرنه د کلماتو لوستلو او تلفظ ته راړول او د متن مفهوم اخیستل. |
| ــ د ټولو زده کوونکو تشویق اوهڅونه چې متن په لوړ غــږ ولولي. | ــ د ښوونکي له تشویق سره سم د متن په لوستلو کې ونډه اخیستل. |
| ــ د ټولو زده کوونکو سهم او ونډه اخیستل د پوښتنو پــه ځوابولو کې.. | ــ زده کوونکی پوښتنو ته په ځواب ورکولو کې خپله وړتیا ځرګندوي! |
| ــ له زده کوونکو څخه د ګرامر په برخه کې ځینې پوښتنې، لکه نوم او د هغه ډولونه. | ــ زده کوونکي له ځانه د نوم ډولونه او مثالونه وایي. |
| ــ د زده کوونکو هڅول چې په متن کې نوي راغلي لغتونه معنا او په جملو کې یې وکاروي. | ــ زده کوونکي له لارښوونې سره سم په عملي کــار کــې برخه اخلي. |
| ــ د زده کوونکو په ګروپونو کې تنظیم او هر ګروپ ته یو ځانګړی فعالیت ورکول او په پای کې د ښه کارله امله د ښه زده کوونکي تشویق او ستایل. | ــ زده کوونکي په ګروپي فعالیتونو کې خپله وړتیا ښــیي او همدا رنګه په ګروپي کار کې مینه او د خپلې پوهې تبــارز ښودل. |
| ــ د زده کوونکو د جرئت له مخې دوی هڅــول چــې د ټولګي په مخ کې د لوست لنډیز ووایي. | ــ په اخلاقي جرئت سره د ټولګي په وړاندې د متن د لنډیز بیانول. |

**د متن د ستونزمنو برخو توضیح کول:**

اپین: یوه تور بخنه قهوه یي رنګه ماده ده چې د کوکنارو د بوټي له شیرې څخه لاس ته راځي. د اپینو او د هغــه د طبــي اغیزوشتون لږ تر لږه له میلادڅخه څلور سوه کاله مخکې زمانو ته رسېږي.

په ځینو سرچینو کې وایي چې په اروپا کې مجاریان لومړي کسان وو چې د خا شخاشو یادونه یې کړېده.

د اسلامي تمدن په وخت کې هم ځینو شاعرانو د اپینو نوم راوړی دی، لکه قدرمنو طبیبانو، بلخي ابوعلي سینا اود محمــد زکریا رازي زوی ویلي دي چې د اپینو کارونه ورو ورو په اعتیاد بدلېږي چې تل مزمن مسمومیت رامنځ ته کوي او پــه مړینه یې ختمېږي.

هېروین:

هېروین له قویترینو او ډېرو خطرناکو روږدېدونکو موادو څخه دي چې د مورفینو له تقطیر څخه لاس ته راځي.

نوموړي مواد یې په طبابت کې د مورفینو په ځای کارول، کله چې پوه شول چې دا مواد له مورفینو څخه هم خطرناک دي، نو د هغه په جوړولو او کارولو یې بندیز ولګاوه، دا داسې وخت و چې ډېر خلک پرې روږدې شوي وو.

روږدو خلکو هغه په بېلا بېلو ډولونو، لکه څکول (لوګی کول). د پوستکي لاندې او په رګ کې یې پیچکاري کولو له لارې کارول.

هیرویین، مورفین او اپین د انسان توانمندي اوجنسي قوه له منځه وړي او په سلو کې اتیا خلک چې په دغو موادو روږدي دي له دې قوې څخه بې برخې دي.

د دغه نشه یي توکو اغېزه د خوب د ډېربدو، لږ خوراکي (بې اشتهایي) سبب کېږي او د انسان حسي اعصاب کمــزوری

کوي.
په هېروېينو باندې اخته او روږدي کسان ورو ورو په خپل ځان بې اعتماده کېږي او په پای کې په يوه طفيلي او بې شخصيته انسان باندې بدلېږي. دوی هميشه د خپلې نشې په فکر کې وي او د هغو د لاس ته راوړلو لپاره هر ډول خيانت، لکه: غلا، لوټول او حتٰی په وژلو لاس پورې کوي.

**د ستونزمنو برخو روښانول:**

په متن کې د (ی) ښودل: جوړېږي، په څرگنده (ي) پای ته رسېدلی.

گرځي، لري او نومېږي هم په څرگنده (ي) پای ته رسېدلي دي.

داسې: په اوږده (ې) پای ته رسېدلی دی.

د لاندې لغتونو معنا:

روږدی: اموخته

روغتيا: صحت او سلامتي

سږی: شُش

هځه: کوښښ

وياړ: افتخار

ستونی: گلو، مرۍ

کرغېړن: الوده او ناپاک

بدمرغي: بدبختي

اورۍ: بيره

لامل: وسيله، علت

_ په لوست کې د صفت او موصوف مثالونه:

سپېڅلی دين، ژېړ غاښونه، بدبويه ځان، ستړی بدن، مشترک دښمن، خوږ نعمت

_ په لوست کې عام او خاص نومونه:

خاص نومونه: د اسلام دين.

عام نومونه: کار، ټولنه، موټر، دوکان، هوټل، دفترونه، پارکونه.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

سګرټ او نسوار هغه مضر توکي دي چې له ډېرې پخوا زمانې څخه زموږ ګران هېواد افغانستان ته له نورو هېوادونو څخه راوړل شوي او دلته رواج شوي دي. دا دواړه نشه يي توکي د اخته کېدو لومړني بنسټ ابښودونکي ګڼل کېږي او دادواړه توکي د تنباکو له بوټي څخه جوړېږي. تنباکو هغه بوټی دی چې لويې او پرېړې پاڼې لري او زيړ ته ورته کريمي ګلان او مېده غونډې تور تخم لري . په معتدلو اوګرمو سيمو کې کرل کېږي. دا بوټی لومړی ځل کرستف کلمب پېژندلی دی چې د ځمکې د کرې د اثبات په خاطرېې د نړۍ په ځينو برخو کې اوږده سفرونه وکړل او د خپلو سفرونو په بهير کې هغې ځمکې ته ورسېده چې نن ورځ د کيوبا په نامه سره يادېږي. کرستف کلمپ د لومړي ځل لپاره له داسې بوټي سره مخامخ شو چې خلکو ورڅخه د ستړيا او خستګۍ د لرې کولو لپاره کار اخيسته، نوموړي عالم د دې بوټي پاڼې او دانې له ځانه سره اروپا ته راوړې او له اروپا څخه يې د وخت په تېرېدو سره د نړۍ نورو هېوادونو ته تخمونه ولېږدول شول. نن سبا د نړۍ په هــره برخه کې په پرېمانه اندازه پيدا کېږي او د تنباکو له بوټي څخه په بېل بېل ډول ګټه اخيتسل کېږي، لکه پيپ، چلم او نسوار، تر ټولو د سګرټو اندازه زياته ده. اوسنيو څېړنو داسې ثابته کړې ده چې نشه يي توکي د سرطان د ناورغۍ اغېزې په سګرټو او تنباکو کې له نورو کيمياوي موادو څخه زياتې دي هغه بېلا بېل کيمياوي مواد چې د سګرټو په لوګي کې شتون لــري د انسان د بدن په بېلا بېلو برخوباندې منفي اغېزې کوي چې موږ يې دلته د هغو شپږو توکو چې تر ټولو زيـــات زيـــانمن او خطرناک دي يادونه کوو.

۱ـ نيکوتين چې ډېر زيات مسموم کوونکي او خطرناک دي او د روږدي کېدو سبب کېږي.

۲ـ مونو اکسايد کاربن چې د زړه سکته رامنځ ته کوي.

۳ـ ارسنيک چې زياته اندازه کارونه يې د مسموميت سبب ګرځي.

۴ـ سيانيک اسيد چې زياته اندازه کارونه يې د ډېر خطرناک مسموميت سبب ګرځي.

۵ـ راديو اکتيف مواد چې د سرطان رامنځ ته کوونکي دي، د بدن په غړو په ځانګړي ډول په سترګو او وينه باندې ناوړه اغېزه لري.

٦ـ د امونيا ګاز چې د ډېر شديد تلپاتي او په وينه کې د اختلا لونو د رامنځ ته کېدو او د تېزابو د جوړېدو سبب کېږي.

او د دې ترڅنګ سګرټ څکول يا يې لوګی تنفس کول ځينې داسې نورې ستونزې زېږوي لکه خوله بدبويه کوي، غاښونه خرابوي او رنګ ژېړوي، سږي خرابوي، نفس تنګي يا ساه بندي پيدا کوي. د سترګو د ليدو ځواک راکموي، دا وريو او شونډو طبيعي رنګ خرابوي، اورۍ شنې کېږي، عمر کموي، وېښتان رژوي. د بدن ستړيا زياتوي، خو د دغــو ســتونزو سربېره دا وريو، سږو، معدې، ستوني او نورو غړيو د نه درملېدونکو سرطاني نارغيو لامل ګرځي او د دې ترڅنګ د دماغي سکتې د زړه حملې او نورو ناورغيولامل کيږي، خو د يو سګرټ په څکولو سره د زړه ضربان په يوه دقيقه کې شـــل وارې زياتېږي، خو له شل دقيقو وروسته دغه ضربان نور هم لازياتېږي، وروستيو څېړنو داسې ښودلې ده چې په نړۍ کې په کـــال کې پنځه ميلونه کسان د سګرټو د ناروغۍ له امله خپل ځانونه له لاسه ورکوي. دغه شمېر څرګندونې چې د سګرټو له امله د وژل شويو شمېر په لومړۍ نړيواله جګړه کې د وژل شويو تر شمېر زيات دی، ځکه چې په لومړۍ نړيواله جګړه کې پـــه څلورو کلونو کې لس ميليونه انسانان له منځه تللي دي. په داسې حال کې چې په څلورو کلونو کې د سګرټو له امله د وژل شويو کسانو شمېر ترشل ميليونو زيات دی.

مآخد:

د مخدره توکو ضررونه، ۱۳۸۸لمريز کال.

# شپاړسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونوسرليکونه: | د مطلبونوشرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | پښتو غزل |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې:** | زده کوونکي به وکولای شي چې د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ غزل به وپېژني اوپه مطلب به يې پوه شي.<br>ـ د پښتو غزل د جوړښت په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ په پښتو کې به د غزل په تاريخچه وپوهېږي.<br>ـ دغزل د ليکلو او لوستلو مهارت به يې زيات شي.<br>ـ په پښتو ادب کې به دکلاسيک او معاصرې دورې غزل ويوونکي شاعران وپېژني.<br>ـ د کلاسيک او معاصر غزل ترمنځ به توپير وپيژني.<br>ـ په غزل کې به د صفتونو له کارولو سره بلد شي. |
| ۳ | **د تدريس لارې:** | يو کسيز فعاليت، ډله ييز فعاليت، يوازې توګه ليکل او لوستل، شفاهي پوښتنې، تحريري پوښتنې |
| ۴ | **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشير، کارتونه، د ښوونکي د يادښت کتابچه |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسيلې:** | شفاهي پوښتنې، تحريري پوښتنې، عملي کار، فردي پوښتنې، ډله ييز کار، د ښوونکي د يادښت کتابچه. |
| ۶ | **د زده کړې او تدريس فعاليتونه:** | سلام او روغبړ، د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ دندې له کتلو وروسته د نوي لوست اړيکې رامنځ ته کول. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ـ ايا دشعرله نامه سره اشنايي لرئ؟<br>ـ شعر ونه ټول يوشان دي که سره توپيرلري ؟<br>ـ د شعر کوم ډولونه پېژنئ؟ |

<table>
<tr><th>د ښوونکي فعالیتونه:</th><th>د زده کوونکو فعالیتونه:</th></tr>
<tr><td>_ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک (پښتو غزل) په تخته ولیکي.<br>_ زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې خپلو کتابونو ته وګوري او په خپله دې لوست په مناسب لوړ آوازولولي.<br>_ زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې هر یو یې له ځان سره په پټه خوله ولولي.<br>_ په وار سره دې متن په څو زده کوونکو باندې په مناسب لوړ آواز ولولي.<br>_ ښوونکی دې د لغتونو معنا په تخته ولیکي او زده کوونکي دې یې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>_ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلوو وېشي او هرې ډلې ته دې دنده ورکړي چې په متن کې د راغلو غزلونو په جوړښت، مفهوم او موضوعاتو خبرې وکړي.<br>_بیادې د زده کوونکو له هرې ډلې یو غړی د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې ډلی دکار په برخه کې دې نورو ته معلومات ورکړي.<br>_ زده کوونکو ته دې وخت ورکړ شي چې د ستونزمنو کلمو پوښتنه وکړي او ځانونه په لوست وپوهوي.<br>_ د زده کوونکو له پوهېدو څخه د ډاډ په خاطردې له څو زده کوونکو پوښتنه وکړي چې د غزل په هکله معلومات وړاندې کړي.<br>_ ښوونکی دې زده کوونکي وګماري چې د فعالیتونو په ورکړ شوو جملو کې د صفت او موصوف ترکیبونه پیدا او بیا له هر موصوف سره بل صفت د یوې جملې په ترځ کې راوړي.<br>_ کورنۍ دنده : زده کوونکي دې دغزل پنځه بیتونه په نثرواړوي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي .</td><td>_ زده کوونکي تختې ته ګوري او د لوست په سرلیک ځان پوهوي.<br>_ زده کوونکي کتابونو ته ګوري او د ښوونکي لوستلو ته غوږ نیسي.<br>_ زده کوونکي متن په چوپتیا سره لولي.<br>_ زده کوونکي لاس پورته کوي او د متن په لوستلو کې برخه اخلي.<br>_ زده کوونکي لغتونه او معنا یې له تختې څخه په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>_ زده کوونکي په خپلو ډلو کې کار کوي او په وار سره د ډلو یو یو غړی د ټولګي نوروګروپونوته د خپل کار معلومات ورکوي.<br>_ زده کوونکي د ستونزمنو کلمو پوښتنه کوي.<br>_ زده کوونکي د غزل په اړه معلومات په خپلو خبرو کې بیانوي.<br>_ زده کوونکي د صفت او موصوف مثالونه وایي او په جملو کې یې په شفاهي ډول کاروي.<br>_ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې پرې کار کوي.</td></tr>
<tr><td colspan="2">د متن ستونزمنو بر خوروښانول:<br>صفت _ موصوف<br>سپین _ کاغذ (سپین کاغذ)<br>تور _ قلم (تور قلم)<br>بره _ چینه (بره چینه)</td></tr>
</table>

يخې _ اوبه (يخې اوبه)
رڼه _ هنداره (رڼه هنداره)

**د متن خاص نومونه:**
خوشحال خان خټک، عبدالرحمان بابا، عبدالحميد مومند ، ميرويس نيکه ، عبدالشکوررشاد ، شيرشاه مېنه .

**دښوونکي لپاره اضافي معلومات:**
غزل هغه شعري ډول دی چې له عربي څخه پښتواودري ته راغلی دی . غزل په پښتو ادبياتو کې هم خپل پرمختيايي پړاوونه وهلي دي. له ځوپېړيو راهيسې په پښتوشاعرۍ کې غزل شته اوخورابښه پرمختګ يې کړی دی.غزل هغه شعرته وايي چې دلومړني بيت دواړه نيم بيتي سره هموزنه اوهم قافيه وي. دنوروبيتونو ددويم نيم بيتي قافيه بايد له لومړني بيت سره برابره وي ، خودټولو وزن بايد سره يوډول وي. غزل له پنځوبيتونو څخه ترپنځلسو بيتونو پورې وي. خواوسني شاعران هڅه کوي چې دغزل دبيتونو شمېرترنهو زيات نشي . غزل به پخواغنايي اوعشقي مضامين درلودل، خواوس له نيکه مرغه هرډول مضامين په خپله غېږه کې رانغاړي . په پښتو ژبه کې لومړنی ترلاسه شوی غزل داکبرزمين داوري دی. اکبردزمين داوراوسيدونکی و، پخوا(داور) باله کېدی اودغزنوي اوغوري پاچاهانوپه عصرکې يې روڼ مدنيت درلوده، ښکلې په زړه پورې ودان ښارونه يکې و دا ن شوي وو . د هغه وخت مسکوکات په کې تراوسه ميندل کيږي . اکبرزمين داوري دژوند زمانه ۷۵۰ هجري قمري کال اټکل شوې ده اوده دغزلونو يوښکلی ديوان درلود خوبدبختانه يوازې يودوه غزلونه يې موږته راپاتې دي . د ده غزل په خپل عشقي رنګ کې راښکاره کېږي اوپه پښتوادبياتو کې نوی ځرک ځرګندوي، لکه چې وايي .

## غزل

دخپل ځان له حيرانيه څه ويل کړم
دعشق ويربه تل پخپله پټول کړم
مامدام لکه بوراپه ګلوګشت کړ
اوس به ځم په سرتورسرفراق دګل کړم
دغمازلړمون به زه په لمبه کېږدم
ځينې هېربه ديارېزم ګل اومل کړم
زما ديار دمينې اورپه زړه کې بل دی
زه به سراومال ښندم ديد به حاصل کړم
دبېلتون له ويره ژاړم اوښکې وينې
زه (اکبر) په خپل اشنا دسرښندل کړم

خوپاتې دې نه وي چې په لرغونې دوره کې له اکبرزميندوري څخه نورو شاعرانوهم لکه شيخ محمدصالح ، زرغونې کاکړې . علي سرورلودې اوداسې نوروشاعرانودغزل نيلی زغلولی دی . دشعراوشاعرئ ميدان يې خالي پرې ايښی نه دی .خوله لرغونې دورې څخه په منځنۍ دوره کې غزل لاښه پرمختګ وکړ اودموضوع له پلوه يې ښل ښل مضامين راخيستي اوژبنې هنريې لوړپوړته رسېدلی دی .چې داښکلايي دخوشحال خان خټک ،صوفي شاعرعبدالرحمان بابا ، عبد الحميد مومند اوداسې يوشمېرنوروشاعرانو په غزلونو کې ترسترګوکېږي.

له منځنی دورې څخه وروسته بیا په معاصرې دورې کې دپښتوغزل بیادېرلوړپوړته رسېدلی اوپه هره برخه کې یې خورابښــه پرمختګ کړی دی . ژبنی اړخ یې دهنرپه ګاڼه سنبال شوی دی .اوډول ډول مضامین یې په خپله غېږ کې رانغــاړلي دي .
ځینې څېړې پکې دومره ځلیدلي دي چې حتې دبابا لقب یې ګټلی دی .لکه استادامیرحمزه شینواری.امیرحمــزه شــینواری دخیبرپه هسکه اوجګه دره کې  په ۱۹۰۷ م زیږدیزکال سترګې نړۍ ته پرانیستې دي. دحمزه بابــا پلاردخپلــې ســیمې یومخورقومي مشروامیرحمزه دوه کلن و چې موریې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې. اوبابا دعمراتم پسرلی لانــه و بشپړکړی چې پلاریې وفات شو.حمزه بابا شپږکلن و چې دلنډي کوتل په لومړني ښوونځي کې شامل شو. اوترشپږ کلنــی پورې یې په همدغه ښوونځي کې زده کړو ته دوام ورکړ.اوبیا یې دنوروزده کړولپاره دپېښورپه اسلامیه کالج کې خپلوزده کړو ته  دوام ورکړ .حمزه بابا پنځه کلن وچې شعراوشاعري یې پیل کړه. خوحمزه بابا دلومړي ځل لپاره په اردوژبه شعرونه ویل، له څه مودې وروسته دخپل استاد شیخ عبدالستار په سپارښتنه یې په خپلې مورنۍ ژبه پښتو شعراوشاعري پیل کړه اودژ وند ترپایه پورې یې دپښتوادبي بهیرګړندی کړ او پښتو غزل ته یې ښکلا اوځواني وبخښله، لکه څنګه چې دی په خپله وایي.
ستا په اننګو کې دحمزه دوینو سره دي          ته شوې د پښتو غزله ځوان زه دې بابا کړم
خوحمزه بابا دپښتو دادب دبډاینې لپاره ډېرعلمي اوفرهنګي خدمتونه کړي دي چــې هریــویې دســتایلو وړدی اوزیــات شمېرکتابونه یې ولیکل چې یوشمېریې دده په ژوند دچاپ حق خپل کړی دی. په پای کې دهغې ناروغي له امله چې وریپښه شوې وه په کال ۱۳۷۲ لمریز کال له دې فاني نړۍ څخه ابد ي اوتل پاتې نړۍ ته مخه کړه.
ماخذ : دتربیت مجله شپږمه ګڼه .
نومیالي شاعران او لیکوال، پوهاند صدیق الله رښتین د موسسه نشرات تاج محل کمپني، پېښور.

# اوولسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونوسرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | مېرمن عینو |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ـ د پښتنو سیمو یا د هېواد د مشهورو ښځو پېژندنه،<br>ـ د مېرمن عینو په هکله پوهه او معلومات ترلاسه کول،<br>ـ د مېرمن عینو د مشهورېدلو ویاړ او افتخار به نورو ته بیان کړای شي.<br>ـ د نوم حالتونه وپېژني او په جملو کې به یې له یو بل څخه توپیر کړي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | سوال او ځواب، ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، یوازې لوستل او لیکل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | درسي کتاب، توره تخته، تخته پاک، تباشیر، کتابچه |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي ارزونه، عملي کار په ګروپي ډول.<br>لوستل، لیکل، سوال او ځواب. |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | لومړني فعالیتونه:<br>سلام ورکول، حال او احوال پوښتنه، د حاضري اخیستل، د ټولګي تنظیم، د تېر درس ارزونه او دکورنۍ دندې کتل او اصلاح. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | هڅوونکي پوښتنې:<br>ـ تاسې د هېواد له نومیالیو ښځو سره اشنا یاست او د هغو له جملې د چا په هکله مو څه اورېدلي یا لوستلي دي؟<br>په دې توګه ښوونکي ته پته لګېږي چې په دې برخه کې څوک کم او زیات معلومات لري او د عینو نوم له زده کوونکو څخه ترلاسه کوي. |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست د عنوان د پیدا کولو لپاره پاملرنه وکړي او تر ویلو وروسته دې ښوونکی هغه په تخته ولیکي. | ـ زده کوونکي دې د عنوان د پیدا کېدو لپاره هڅوونکو پوښتنو ته ځوابونه ووایي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په چوپتیاسره د متن لوستلو ته وهڅوي او د دوی د متن د لوستلو بهیر دې وڅاري. | ـ زده کوونکي دې په پوره غور سره متن په پټه خوله ولولي. |
| ـ ښوونکی دې د متن په لوستلو پیل وکړي او په مناسب آواز دې ولولي او د مفهوم په برخه کې دې پوره څرګندونه وکړي. | ـ زده کوونکي دې د کلمو لوستلو او تلفظ ته پاملرنه وکړي او خپلې ستونزې دې له مینځه یوسي او همدا رنګه د متن په مفهوم دې ځانونه پوه کړي. |
| ـ ښوونکی دې د متن لوستلو ته یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راوغواړي او د لوست یوه یوه برخه دې پرې ولولي او له ځینو نورو زده کوونکو څخه دې د لوست د لنډیز په هکله وپوښتي. | ـ زده کوونکي دې خپله علاقه، لیاقت او زیارنه د متن په لوستلو او د لنډیز په ویلو کې وښيي. |
| ـ ښوونکی دې ځینو زده کوونکو ته موقع ورکړي چې له نورو زده کوونکو څخه د لوست د فعالیتونو پوښتنې وکړي او د نه پوهېدو په صورت کې دې ورسره مرسته وکړي او هغه دې پوره تکرار کړي چې نور زده کوونکي هم پکې ونډه واخلي. | ـ زده کوونکي دې له یو بل نه د فعالیتونو په اړه پوښتنې وکړي او د فعالیتونو ځوابونه دې ووایي.<br>ـ زده کوونکي دې د لیکلو په فعالیت کې خپله ونډه وښيي او د ترکیبونو ځانګړنې دې څرګندې کړي. |
| ـ په پای کې دې له پاتې کسانو څخه په وار سره وغواړي چې یو یو تن د متن لاندې لغتونه په تختې ولیکي او ودې وایي چې له ګرامري اړخه دغه ترکیب څه نومېږي؟<br>څلور کتابونه، شپږ قلمونه، پنځه نجونې، لس مېزونه، اته هندوانې. | ـ زده کوونکي د فعالیتونو د برخې پوښتنو ته ځوابونه ووایي او خپله ورتیا دې څرګنده کړي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست د فعالیت وروستۍ برخه ولولي او پوښتنو ته یې ځوابونه ووایي. زده کوونکي دې پکې فعاله برخه واخلي. زده کوونکي خپله دنده ترسره کړي. | |

**د لوست د ستونزمنو ټکو توضیح:**

احمد شاه بابا: د زمان خان سدوزي زوی د ابدالي یا دراني (د افغان سربن له څانګې) قبیلې پورې اړوند ۱۱۳۵ق. (۱۷۲۲م.) کال شاوخوا په هرات کې وزیږېد، څرنګه چې په ۱۱۵۱ق. (۱۷۳۸م.) کال نادر افشار هرات او کندهار ونیول اوتر هغې وروسته یې له مازندران څخه خپل دربار ته راوغوښت او د اووه زریز ابدالي لښکر په مشرتابه یې له ځان سره مقرر کړ او داغستان او ایران په جنګي سفرونو کې یې شپږ کاله له نادر شاه سره داسې مېړانه او اخلاق وښودل چې د نادر د ځانګړې پاملرنې وړ وګرځېد، هغه ته یې د هغه د ورتیا په خاطر وویل: ته به تر ما وروسته پادشاهۍ ته ورسېږې،

| |
|---|
| ځرنګه چې نادر افشار ووژل شو احمد خان له ابدالي لښکر سره د ۱۱۶۰ق. کال په رجب (۱۷۴۷م.) کې کندهار تـــه راغی. د کندهار د قومونو مشرانو احمد شاه د (دراني) په لقب د ۱۱۶۰ق. په رجب کې چې (۱۷۴۷م.) کال له جولای سره برابر دی، خپل پاچا وټاکه. ده کندهار خپل پایتخت وټاکه او اداري، لښکري، مالي، مدني او درباري تشکیلات یـــې جوړ کړل.<br>په ۱۷۷۲م. کال د جون په لسم د پنجشنبې د غرمې په وخت د کندهار د توبې غره په سیمه کې د ۵۱ کلونو په عمر وفات شو او د کندهار په ښار کې خاورو ته وسپارل شو. احمد شاه د اوسني افغانستان مؤسس، عادل، دیندار، اداره چې، مدبر او زړور شخص و. |
| **اضافي معلومات :**<br>که موږ خپل وياړلي تاريخ ته په ځيرسره کتنه وکړو. دابه راته جوته شي چې زموږ ګران وطن افغانستان د خپل جغرافيـــايي جوړښت له پيل ځخه تردې دمه په خپله غېږه کې داسې نومیالي اوننګیالي زامن او توریا لی. لوڼې روزلي دي چې په هرمیدان کې يې خپله توره اومېړانه ښودلې ده . چې په خپلو سرښندنو يې دتاريخ پاڼې ښکلې کړي دي . ددې نومیاليو په لـــړ کـــې مېرمن عینو هم په خپل افغاني احساس دخپل پت اوعزت دساتنې اودپښتنو دسرلوړی په خاطردخپل مېړني ولس په وړانـــدې خپله مېړانه ځرګنده کړه اوپه وياړ يې ستروا‌کمن اعلحضرت احمدشاه بابا داسې ونازوله چې نوم يې په تاریخ کې دتل لپاره ژوندی پاتې شو اوهغه لو ی کاریزيې په انعام کې ورته وبخښه چې تراوسه د عینوپه نامه مشهوردی او دا کاریز د کندهار له زاړه ښار لمرخاته خواته پروت دی.<br>ماخذ :<br>اریانادایرة المعارف ۱۳۸۱هـــ.ش. کال. |

# اتلسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبو نو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | جرګه |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ــ زده کوونکي به وکولای شي چې دجرګې په ارزښت وپوهیږي .<br>ــ د جرګې اړتیاوې به وپېژني او مطلب به يې نورو ته بیان کړای شي.<br>ــ د جرګو د جوړولو په ضرورت به وپوهیږي.<br>ــ د جرګې متن به ولوستلی شي.<br>ــ زده کوونکي به په افغانستان کې له پخوانیو تاریخي جرګو څخه خبر شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | په یوازې توګه لوستل، ډله ییز کار، پوښتنې او ځوابونه، لوستل، لیکل، ویــل او اورېدل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | د ښوونکي د یادښت کتابچه، د جرګو انځورونه، تخته، تباشیر. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي، تحریري پوښتنې، لوستل، لیکل، عملي کار، ډله ییز کار، د ښوونکي د یاددښت کتابچه. |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | له سلام او روغبړ، د ټولګي له تنظیم، د حاضرۍ اخیستلو او کورنۍ دندې لــه کتلو وروسته د يو زده کوونکي په واسطه د ټولګي په تخته د کورنۍ دندې لیکل او زده کوونکو ته بلنه ورکول چې خپلې کورنۍ دندې ورسره پرتله او اصــــلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | که ستاسې په کلي کې د دوو کورنیو ترمنځ څه خوابدي پېښه شي، څنګه يــې پخلا کوئ.<br>هغه خلک چې په دغه روغه کې کېني دغه مجلس په څه نامه یادېږي؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی له سلام او روغبړ، د ټولګي له نظم د حاضرۍ اخېستلو او کورنۍ دندې له کتلو نه وروسته د نوي او تېر لوست اړیکې رامنځ ته کوي.<br>ـ هڅوونکي پوښتنې: شخړې څنګه له منځه وړو؟ په ټولنو کې کوم کارونه په جرګوسره حل کیږي ؟<br>ـښوونکی دې دنوي لوست سرلیک (جرګه) په تخته و لیکي او بیا دې په مناسب لوړ آوازو لولي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې کتابونو ته پاملرنه وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په پټه خوله ددرس لوستلو ته تشویق کړي څو دوی ستونزمنې کلمې او برخې په نښه کړي.<br>ـ زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې متن په وار سره یو یو زده کوونکی په لوړ غږ ولولي.<br>ـ څو تنو زده کوونکو ته دې په وار سره بلنه ورکړي چې د ټولګي مخې ته راشي او لغتونه په تخته ولیکي، پخپله او نور زده کوونکي دې په کتابچو کې ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې په ډلوو وېشي چې هره ډله د جرګو او مرکود فعالیتونو په (۳، ۴، ۵، ٦، ۷، ۸) شمېرو باندې یو څه ولیکي.<br>ـ د هرې ډلې یو غړی دې د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د خپلې ډلې د کار څرنګوالی ټولو ته ووایي.<br>ـ څو تنو زده کوونکو ته دې د هغوی له خوښې سره سمه بلنه ورکړي چې په ټولنیز ژوند کې د جرګې په اړتیا خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې په ارزښت پوه کړي.<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي چې په کلي کې د هغو جرګو په اړه معلومات راغونډ کړي چې د دوی په کلي کې د شخړو په له منځه وړلو کې جوړې شوې وي | ـ زده کوونکي دې له روغبړ نه وروسته کورنۍ دندې د ښوونکي کتلو ته وړاندې کړي.<br>ـ زده کوونکي دې ځواب ورکړي چې جرګه شخړې له منځه وړي او روغه جوړه رامنځ ته کوي.<br>ـ زده کوونکي دې لوست ته پام وکړي او د ښوو نکي لو ستلو ته دې غوږ ونیسي.<br>ـ زده کوونکي دې په پټه خوله متن ولولي او ستونزمنې برخې دې په نښه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د لوست په لوستلو کې برخه واخلي.<br>ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي او نور زده کوونکي دې دمتن په لو ستلو کې وړتیا وښيي.<br>ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د جرګې د فعالیتونو په برخه کې خپل معلومات ولیکي.<br>ـ په وار سره دې هرې ډلې یو غړی د ټولګي مخې ته را شي او د خپل ګروپ کار دې نورو ته بیان کړي.<br>ـ په وار سره دې هر زده کوونکی و غواړي چې په ټولنیز ژوند کې د جرګو په اړتیاوو خبرې وکړي چې نور زده کوونکي یې په ارزښت پوه شي.<br>ـ زده کوونکي دې کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې ولیکي او په خپلو کوروتو کې دې بشپړه کړي. |

.

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

د لاندې لغتونو معناګانې:

کمزوری: ضعیف

مکلف: په یوه کار ګمارل شوی یادیوکارترسرکوونکي

صلاحیت: واک

دود: رسم او رواج
تضمین: ضمانت کول
په متن کې نومځري دا دي:
خپل: مشترک ضمیر دی
هغه: اشاري نومځری دی
کله: استفهامي نومځری دی
زموږ: ملکي یا اضافي نومځری د جمع متکلم لپاره راځي.
څوک: په استفهامي او مبهم نومځرو کې کارول کېږي.
تاسې: شخصي ضمیر د جمع مخاطب لپاره دی.

**اضافي معلومات:**

پښتانه چې د ننني نړۍ اریایي توکم یوه مشهوره څانګه ده او په یوه سره ترلې او نښتې سیمه کې ژوندکوي او له پیدایښت سره سم داسې دودونه او رواجونه لري چې د پښتون قوم د تدبیر او تعقل اثبات یې کړی دی، د هغه له جملې څخه یو ډېر لوی دود د جرګې په نامه یادېږي چې د شورا او مشورې په توګه یې په قران عظیم الشان کې هم یادونه شوې ده لکه چـــې وایي: ((تاسې مشوره وکړئ په خپلو کارونو کې)) جرګه په اصل کې یو پښتو لغت دی چې د څو یا ډېرو وګړو د یو ځای کېدو په معنا ده د جرګې کلمه د سنسګریټ اوریګویدا په لرغونو اثارو کې هم راغلې ده، خو جرګې په دوه ډوله دي. یوه لویه جرګه او بله وړه جرګه ده. لویه جرګه د لویو او ملي کارونو د حل لپاره دایرېږي او وړه جرګـــه د وړو کـــارونو او ستونزو لپاره، خو دا دواړه جرګې هره یوه په خپل ځای کې د اهمیت وړ دي او پښتنو تر اوسه دغه خپل تاریخي دود پاللی او ساتلی دی او د جرګو او مرکو دغه ټولنیز روح د دوی په رګونو کې داسې ننوتلی دی چې هېڅکله ورنه بېلېدای نشي، نو د پښتنو د همدې قوي او ټینګ خوی او دود پر اساس د هر ستونزمن او سخت کار په وخت کې یې ولـــسي او ملـــي جرګې رابللي دي او په ګډه یې د حل او پرېکړې لارې چارې برابرې کړي دي.

دا دی په ترتیب سره په هغو جرګو بحث کوو چې د افغانستان په تاریخ کې تېرې شوي دي.

۱ــ د میرویس خان هوتک په دوره کې ډېرې لویې جرګې تېرې شوي دي. لومړۍ جرګه په کال ۱۷۰۵م. کې د کندهار د زاړه ښار په کوکران نومي ځای کې جوړه شوی وه، په دې جرګه کې داسې پرېکړه وشوه چې د صفوي یرغلګرو په وړاندې دې په خپله میرویس خان له خپل تدبیر څخه کار واخلي.

دویمه لویه جرګه په کال ۱۷۰۷م.کال کې د کندهار شمال ختیځ ته په مانجه نومي ځای کې جوړه شوی وه. په دې جرګه کې سرېږه د پښتنو په بیلا بېلو قبیلو او قومونو، لکه بلوڅ، هزاره او تاجکانو هم ګډون کړی و او د ګرګین پر ضد یـــې د عمومي پاڅون نقشه جوړه او په عمل کې یې پلې کړه، تر بریالیتوب وروسته ۱۱۱۹ هـــ . ق. کال یې میرویس خان د ملي مشر په توګه وټاکه.

۲ــ د احمد شاه بابا د دوران جرګه: دا جرګه په کال ۱۷۴۷م. کال کې په کندهار کې د بېلا بېلو افغاني مشرانو په یووالي د هېواد د مشر او واکمن د ټاکلو لپاره جوړه شوې وه او پوره اته ورځې یې دوام وکړ. په نهمه ورځ یې صابر شاه ملنګ د احمد خان نومي څلریشت کلن ځوان په سر کې د غنمو وږی کېښود او د جرګې د ټولو ګډون والو له خوا ومنل شو او د خپلې ا مپراطورۍ د لوړو کارنامو او په ملت د مهربانۍ له مخې د بابا لقب ورکړل شو.

۳ــ د ملي غازیانو لویه جرګه: دا جرګه د افغان او انګلیس د لومړۍ جګړې په بهیر کې د ۱۸۴۱م کال. د نومبر په لومړۍ نېټه د روژې په مبارکه میاشت کې د شپې له خوا د عاشقانو او عارفانو په زیارت کې جوړه شوه او په پای کې هغه وخت د انګرېزي ښکېلاکګرو په وړاندې د عمومي پاڅون لپاره انقلابي شورا جوړه او نواب محمد زمان خان یې د رئیس او امین الله خان لوګري یې د مرستیال په توګه وټاکل. د دې جرګې مشهور غړي عبدالله خان اڅکزي، میر مسجدي خان او نورو چې ملي غازیان د همدې لویې جرګې په مشرتابه د جهاد او برې پړاو ته ورسیدل اوا نګرېزان په ۱۸۴۲م. کال له ماتې ســـره مخامخ او تېښتې ته اړ شول.

۴ــ د امیر شیر علیخان د دورې جرګې:

د امیر شیرعلیخان په دوره کې دوې لویې جرګې رامنځ ته شوې:

لومړۍ جرګه په کال ۱۸۶۵م. کې جوړه شوه او نیږدې ۲۰۰۰ تنو پکې ګډون کړی وو. امیر ته یې دا مشوره ورکړه چې کورنۍ اړو دوړ پای ته ورسوي.

دویمه لویه جرګه یې په ۱۸۸۳م. (۱۲۹۰ق.) کال په کابل کې جوړه شوی چې امیر خپله کابینه جوړه کړه او سید نـــور

محمد شاه يې صدراعظم او نور يې په هره برخه کې وزيران وټاکل.

۵_ د امير حبيب الله خان د وخت لويه جرگه:

دا جرگه له علمي ،روحاني او قومي شخصيتونو او د دولت له ارکانو څخه په ۱۹۱۵م. کال جوړه شـــوی وه، د نړيـــوالې جگړې په اړه يې د افغانستان د بې طرفۍ پرېکړه وکړه.:

٦_ د امير امان الله خان د واکمنۍ د وخت جرگې:

لومړۍ لويه جرگه د ننگرهار مشرقي په نامه په ۱۹۲۰م. کال کې جوړه شوه چې د هېواد وگړي د خپلواکۍ ساتلو ته چمتو کړي، دا ځکه چې خپلواکي نوې ترلاسه شوی وه.

دويمه لويه جر گه ۱۹۲۴م کال د نومبر په پنځمه او شپږمه نېټه په کابل کې جوړه شوه، ترڅو د دولت په پرېکړو او دريځ غور وکړي.

۷_ د اعليحضرت محمد ظاهر شاه د وخت لويې جرگې:

د محمد ظاهر شاه په څلوېښت کلنه دوره کې دوې لويې جرگې منځ ته راغلي دي. لومړۍ جرگه په ۱۳۳۴ هــ . ش کال. د لړم د مياشتې په ۲۲ د پښتونستان د ملي ورځې په باره کې رامنځ ته شوه او ټول ټال ۳۳۱ تنو پکې گډون درلود.

دويمه لويه جرگه: په کال ۱۳۴۳هــ . ش. په ۲۳ د سپتمبر د اساسي قانون د تصويب لپاره د ارگ په سلام خانـــه کـــې جوړه شوه او غونډه د محمد ظاهر شاه له خوا پرانستل شوه.

۸_ د حامد کرزي د وخت بېړنۍ لويه جرگه: دا جرگه د بن د فيصلې په اساس د ملي وحدت د منځ ته راتلو او د لنډ مهاله حکومت جوړېدلو او نورو مسالو د حل لپاره په ۱۳۸۰ کال د جوزا له ۲۱ نه تر ۳۰ نېټې پورې دلويې اضطراري جرگې په نامه کابل د پولي تخنيک په انستيټوټ کې جوړه شوه له ۱۵۰۰ تنو زياتو منتخبو وکيلانو پکې گډون درلوده.

ماخذونه:

افغانستان در قرن بيست

ټول افغان مجله لومړۍ گڼه

دپښتو تاريخ، قاضي عطاء الله خان،پېښور.

# نولسم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | چاپېریال پاک ساتل |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ــ زده کوونکي به پاک چاپېریال وپېژني او په ارزښت یې وپوهېږي.<br>ــ د خپل کور، ټولګي او چاپېریال په پاک ساتلو کې به برخه واخلي.<br>ــ دچا پېریال د پاک ساتلو له لارې به د خپلې سلامتۍ په فکر کې شي.<br>ــ د نوم ډولونه به د جوړښت له مخې وپېژني او په خپلو خبرو اترو کې به یــې سم وکاروي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | لوستل، لیکل، سوال او ځواب، انفرادي او ګروپي فعالیتونه. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، کتابچې، قلم، تباشیر، تخته او د هر ډول چاپېریال انځورونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي ارزونه، عملي کار، د تېر درس ارزونه، د کورنۍ دندې ارزونه، پر لیکلو، لوستلو، ګروپي کار، سوال او ځواب، خبرې کولو کې، ارزونه، د ښــوونکي د یادښت کتابچه. |
| ٦ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | لومړني فعالیتونه:<br>سلام او روغبړ، د حاضري اخستیل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | هڅوونکي پوښتنې:<br>ــ موږ چېرته ژوند کوو؟<br>ــ زموږ شاوخوا ته څه وايي؟<br>ــ ښه چاپېریال زموږ له روغتیا سره څه اړیکې لري؟<br>ــ د دې ډول پوښتنو په وسیله ښوونکی ته د زده کوونکو پوهه مخکې له درس څخه معلومېږي او زده کوونکي د لوست عنوان پیدا کوي. |

| د زده کوونکو فعالیتونه: | د ښوونکي فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سـر سم د کتاب لوستلو ته پوره پاملرنه وکړي.<br><br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له خـوا د نـوي لوست لوستلو ته غوږ ونیسي.<br><br>ـ زده کوونکي دې په وار سره د نـوي درس پـه لوستلو کې برخه اخلي.<br><br>ـ زده کوونکي دې د نوو لغتونو د جملو په جوړولو کې خپله وړتیا څرګنده کړي.<br><br>ـ زده کوونکي دې په خپلو ګروپونـو کـې پـه ورسپارل شوو کارونو کې خپله وړتیا وښیي.<br><br>ـ زده کوونکي دې په ورسپارل شوې کورنۍ دندې ځان پوه او په کور کې دې کار کړي. | ښوونکی دې دنوي لوست دسرلیک په موندلو سره هغه په تختې ولیکي .<br>– ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې خپلوکتابونو تـه وګوري اوپه پوره دقت اوپه پټه خوله هغه ولولي.<br>– ښوونکی دې نوی لوست دچاپیریال پاک ساتل په لـوړاو مناسب آوازولولي دهغه دمعنا اومفهو م په برخه کې دې رڼاواچوي .<br>– ښوونکی دې نوی لوست په زده کوونکـو بانـدې پـه وارسره تکراراودهغوی مشکلاتو ته دې پاملرنه وکړي .<br>– ښوونکی دې دنـوي درس لغتونـه پـه زده کوونکـو تکراراوهغوی ته دې نوي جملې جوړې کړي .<br>– ښوونکی دې زده کوونکي په څو ګروپونـو وویـشي اولومړۍ ډلې ته دې ددوهم فعالیت په ۷۷ مـخ کـې، دویمې ډلې ته دې دریم فعالیت،دریمې ، ډلـې تـه دې څلورم فعالیت ،اوڅلورمې ډلې تـه دې پـنځم فعالیـت وټاکي. خپله دې ځارنه وکړي اوپه پا ی کې دې دهـرې ډلې استازی خپله لیکلې پاڼه نوروتـه ووایـي.بیـا دې ښوونکی ښه اووړ ګروپ اعلان کړي اوښه دې وستایي .<br>– وروسته ترارزیابۍ دې زده کوونکو ته په ۷۷ مخ کـې ورکړ شوې کورنۍ دنده وسپاري.<br>– |

**دمتن دستونزمنوبرخو روښانول :**

۱ ځینې لغتونه:

| | |
| --- | --- |
| سمسور | ښېراز |
| واکمن | اختیارلرونکی، پاچا |
| غړی | عضو |
| هڅې | تلاش اوکوښښونه |
| استوګنځای | د اوسیدو ځای |

۲ دلغتونومربوطې معناوې

| | |
| --- | --- |
| هوساینه | آرامي |
| سمسور | شین اوښېرازه |
| ژوي | ژوندي، ساکښ |
| شهرت | مشهورتیا |

ژغورل ساتنه، نجات

ونډه برخه

اړیکه رابطه

اخلا ص صداقت

**۳ مترادف لغتونه په متن کې**

ښېراز سمسور، شین او شاداب

ژوی ژوندی، ساکښ، زیروح

ساتنه ژغورنه، نجات

ونډه برخه، سهم

په اړه په هکله، په ارتباط

**۴ متضادې کلیمې:**

ژوند مرګ

ککړ پاک

صداقت دروغ، فریب

واکمن بې واکه

**ښوونکي ته اضافي معلومات :**

انسان دپیدایښت له هماغې لومړۍ ورځې دخپل ژوندانه دهوساینې اواوړدیدو لپاره هلې ځلې کړي، دغه هلې ځلې تراوسه روانې دي اوتر هغه به روانې وي چې انسان دځمکې پرمخ ژوند کوي، دانسان په هوساینه کې پاک اوسمسو رچاپیریــال ډېر ارزښت لري، هوا، اوبه، خواړه، ونې، کروندې، ځنګلونه، چمنونه ،و رشوګانې ،غرونه ، دښتې ، ژوي، مرغان او نور د چاپیریال په نامه یادیږي. د چاپېریال توکي الله تعالیﷻ د انسانانو دهوساینې اوګټې اخیستنې لپاره پیداکړي دي .

زموږ ګران هیواد افغانستان یوغرنی هېواددی، ډېرګڼ ځنګلونه ،ښېرازه څرځایونه ،څپاند سیندونه اوخورا ښکلي سمسورې درې لري. دغه ځنګلونه دنښتر ، لمنځه ،سرپ ،ناجو ،کاچل ،سروې ،ښوون ،څېړی ،زېتون ،غوړه څېړۍ، چار مغز، شنې ، ګورګورې ،غرني بادام اونورې ډول ډول ونې لري .چاپیریال دانسانانو ترمنځ شریکه پانګه ده. له چاپیریاله ټول انسانان ګټه اخلي، ډېر توکي یې په ټولو وګړو پورې اړه لري، نوټول وګړي یې باید په ساتنه اوژغورنه کې ونډه واخلي، دچــاپیر یال ځینې توکي لکه کور،کرونده ،بڼ ،صنعت ،اونورپه انفرادي توګه په هر چا پورې اړه لري ،خو څه ناڅه نورې انساني ټولنې سره هم اړیکه پیداکوي اوګټه یا زیان یې انساني ټولنې ته رسیدلی شي .

فزیکي چاپېریال انسان ته هوا، اوبه خواړه ، جامې ،استوګنځی او د ژوند د اړتیا وړ توکي برابروي، انسان دځمکې پــه ابادولو مکلف شوی دی، له همدې امله انسان اړدی چې دچاپیریال په پاک ساتنه ،ژغورنه اوښېرازۍ کې دمسوولیت لــه مخې هراړخیزې هڅې وکړي . انسان باید دچاپیریال توازن وساتي چې الله تعالی یې هم دساتنې ټینګار کړی دی، داســې عمل ونه کړي اوداسې څیز ونه و نه کاروي چې چاپیریال ته زیان ورسوي . که دغه توازن ونه ساتلی شي انساني ژونــد نادارمه کېږي او د ټولنې هوساینه له منځه وړي ،روغتیایي ستونزې رامنځ ته کوي اوپه پای کې انساني ټولنــه دبربــادۍ اوتباهي لورته بیولای شي.

# شلم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| د مطلبونو شرحه | د مطلبو نو سرلیکونه: | ګڼه |
|---|---|---|
| اخېستونکی او پلورنکی | **د لوست موضوع:** | ۱ |
| د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به د (اخېستونکی او پلورنکي) متن په لوستلو پوه شي.<br>ـ زده کوونکي به په دې پوه شي چې څنګه د ضرورت وړ شی له دوکاندار څخه واخلي.<br>ـ زده کوونکي به د محاورې په لوستلو سره د خبرو کولو وړتیا پیداکړي.<br>ـ د اخېستونکي او پلوروونکي په محاوره کې به ځینې جملې اوکلمې سمې ولوستلی شي.<br>ـ په محاوره کې به له نوو کلمو او د هغو له معنا سره اشنا شي. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ۲ |
| پوښتنې او ځوابونه، یو کسیزه او دوه کسیز. | **د تدریس لارې:** | ۳ |
| کتاب، تخته، تباشیر، قلم، د زده کوونکو د یادښت کتابچه، د محاورې چارت، د پلورنکي چارت. | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | ۴ |
| د ښوونکي د یادښت کتابچه، پوښتنې او زده کوونکو ته په لوست کې برخه ورکول. | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | ۵ |
| سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیمول او د حاضرۍ اخیستلو نه وروسته کورنۍ دنده کتل او د اصلاح لپاره یې په تخته لیکل. | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ٦ |
| که اوړه، غنم، او غوړي خلاص شوي وي څه کوو چې اړتیا مو پوره شي؟ | **د انګېزې رامنځته کول؟** | ۷ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ د نوي لوست سرلیک دې په تخته و لیکي او زده کوونکي دې کتاب ته د پام اړولو په خاطر تشویق کړي.<br>ـ متن دې په مناسب او لوړ آوازو لولي، بیا دې زده کوونکو ته بلنه ورکړي چې په چپه خوله یې له ځان سره ولولي.<br>ـ په ټولګي کې دې ګروپونه جوړکړي اوهر ګروپ ته دې ونډه ورکړي چې په خپلو منځو کې سره محاوره وکړي.<br>ـ د هر ګروپ دوه دوه تنو ته دې بلنه ورکړي چې متن په محاوریي ډول ولولي او په عملي توګه دې نوروته وښيي.<br>ـ د هر ګروپ د محاورې په ترسره کولو کې دې زده کوونکي په آفرین او شاباس سره تشویق کړي.<br>ـ زده کوونکو ته دې موقع ورکړي چې خپلې ستونزې حل کړي.<br>ـله زده کوونکوځخه دې پوښتنه وکړي چې له دې لوست ځخه مو څه ګټه واخېسته؟<br>ـ څوک د متن لغتونه په تختې په جملو کې استعمالولی شي.<br>ـ زده کوونکي دې د فعالیتونو ۵ او ٦ شمېره د لیکل شوو کلمو مترادفې کلمې په تخته و لیکی .<br>ـ څوک د متن مفهوم نورو ته بیانولی شي؟<br>ـ ښوونکی زده کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | ـ زده کوونکي دې د لوست سرلیک ته پام و اړوي. کتابونوته دې و ګوري.<br>ـ د ښوونکي لوستل دې په غور واوري او بیا دې په چوپه خوله متن له ځان سره ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې په ګروپونو کې په ډله ییزه توګه کار وکړي او د ورکړل شویو موضوعاتو په اړوند دې د مرکې په ډول خبرې وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په مینه برخه واخلي او له هر ګروپ ځخه دې دوه دوه تنه د محاورې کولولپاره دټولګي مخې ته راشي.<br>ـ زده کوونکي د ښوونکي په تشویق د خوښۍ احساس کوي.<br>ـ زده کوونکي دې د خپلو ستونزو په برخه کې پوښتنه وکړي.<br>ـ زده کوونکي باید د اخېستلو او پلورلو په خبرو او د شیانو په نومونو پوه شي.<br>ـ زده کوونکي دې د متن لغتونه په جملو کې وکاروي.<br>ـ زده کوونکي په شوق برخه اخلي او مترادفې کلمې په تخته باندې لیکي او زده کوونکي د متن مفهوم نورو ته په خپلو خبرو کې وړاندې کوي.<br>ـ زده کوونکي خپله کورنۍ دنده له ځان سره لیکي چې په کورونو کې یې ترسره کړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

مایع: اوبلن

څیز: شی

نرخ: بیه، قیمت

ګران: قیمت بها

د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:

د کلمو مترادف:

بې غمه: بې اندېښنې

بیه: قیمت

تیار: اماده

ویښل: تقسیمول

ژبه د غوږ نیولو، د بیا بیا لیکلو له لارې هم په اسانۍ زده کېږي.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د ژبې په زده کړه کې څلور مهارتونه په پام کې نیول کېږي چې هر ښوونکی باید دې څلورو مهارتونو ته په کلکه پاملرنــه وکړي، دغه څلور مهارتونه اورېدل، ویل، لیکل او لوستل دي.

یعنې کله چې زده کوونکي د کلمې سم تلفظ واوري، هماغسې سم یې لولي، سم یې لیکي او سم یې وایي، څکه نو د ژبې په زده کړې کې باید له نظره ونه غورځول شي.

د ژبې ارزښت:

د ژبپوهانو په نظر ژبه دبشري تمدن او کلتور د زنځیرونو هغه لومړنۍ کړۍ ده چې نورې کړۍ یې په ځان پسې نښلولي دي او عمر یې د اوسنیو انترو پولوژیکي او نورو بشري علومو د موندلو له مخې له سلو زرو کلونو نه زیات اټکل کېدای شي، خو د ارزښت په اړه یې همدومره کافي ده چې پروردګار عالم په قرانکریم کې فرمایي: خدای پاک لومړی انسان پیدا کړ بیا یې خبرې ورزده کړې، یعنې لومړی نعمت چې انسان ته ورکړ شوی دی د انسان پیدایښت دی او دویم نعمت یې ژبه ده او د همدې ژبې له برکته په نورو ساکښانو لوړ او غالب دی.

د ښوونځیو له اهدافو څخه یو مهم هدف دا دی چې د ماشومانو د ګړېدا لوست او لیکلو استعدادونو تــه وده او پراختیــا ورکړي. دغسې مهارتونه د ژبنیو صنایعو په نامه یادوي، دا څکه سربېره پر لوست، خبرې کول او لیکل موږ دوی د نـــورو مقاصدو لپاره هم استعمالو او هغه دا چې د دې صنایعو په واسطه موږ خپل افکار نورو ته په ښه ډول څرګندولی شـــو او د نورو په افکارو ډېر ښه پوهېدلی شو.

په هم هغه اندازه چې د ژبې زده کول اهمیت لري په همدومره پیمانه د ژبې د تدریس مېتود، اصول او لارې چـــارې هـــم اهمیت لري، دا چې د ژبنیو صنایعو او هنرونو د مهارتونو زده کول د ماشومانو لپاره مهم دي، نو څکه زده کوونکي بایـــد دې مهارتونو ته ډېر ښه اصول او لارې چارې ولټوي، که داسې نه وي، نو ماشومان به د ژبې د دې مهارتونو د زده کولو په وخت کې د کړاونو سره مخامخ شي. د ژبې زده کول اکثره د ماشومونانو لپاره مشکل او ګران دي، چې دا مشکلات څو علتونه لري.

۱ـ خبرې کول دتقلید نتیجه ده. ماشومان خبرې کول په کورنۍ او کهول کې زده کوي چې اکثراً محلي شکل لري، یا دا چې د اکثرو فامیلونو ژوند ډېر ساده او ابتدایي وسایل لري، خو ژبې ته دومره انکشاف نشي ورکولای، نو د ښـــوونځي او ښوونکي وظیفه ده چې په ماشومانو کې د صحیح او سم تکلم عادتونه پراخ کړي.

۲ـ د ماشومانو د لغتونو ذخیره کمه وي نو نشي کولای چې خپل نظریات او افکار ښوونکي او نورو ته بیان کړي. همـــدا شان لازمه ده چې ماشومانو ته د تمرین او مشق زمینه برابره شي، تر څو وکولای شي، نوي زده کړي لغاتونه په جملو کـــې استعمال کړي.

۳ـ د ښه او مؤثر لوست زده کړه د ښو خبرو کولو ته نسبتاً مشکله او ګرانه نه ده، دا څکه چې په دې مورد کې د ویلو په شان د تقلید څخه کار نه اخیستل کېږي، بلکې د علامو او سمبولونو سره باید اشنا شي.

۴ـ د ماشومانو لپاره د علامو او سمبولونو د ترکیب معنا او مفهوم مشکل دی. لوستل په علامو او سمبولونو کـــې تغییـــر راوستل دي چې د افکارو او تجربو ممثل ګڼل کېږي. ماشومان د لوست په وخت کې باید په دې باندې وپوهېږي چې که هر وخت ځینې علامې او سمبولونه په یو مخصوص ډول ترکیب شي د ځینو شیانو او افکارو ممثل وي. ماشومان دې هرو مرو

یو زیات شمېر ترکیبات زده کړي او بیا دې د تېرو تجربو له مخې ورته معنا او مفهوم قایل شي. یو ښه مثـــال دا دی چـــې ماشومان د لوست په وخت کې د (پ، ي، ش، و) ټکو سره مخامخ کېږي او زده کوي چې که پورتني ټکي سره یو ځای یا سره ترکیب شي د پیشو کله ترې جوړېږي دا چې ماشوم په کور کې پیشو لیدلي ده او ورسره لوبې یې کړې دي، نو نور د پیشو کلمې ته یوه معنا قایلېږي یعنې داسې حیوان یې په فکر کې ګرځي چې پاسته وېښتان لري. سره له دې چې د ټکـــو د ترکیب عملیه پېچلې ده او زده کول یې ګران دي خو که د زده کړې شرایط یې په دې ډول برابر شي ماشوم یـــې ژر زده کوي. اما که ماشوم د داسې الفاظو سره مخامخ شي چې ورسره بلدیت نه لري، نو څه پېښېږي؟ پیل او نهنګ ښه مثالونـــه دي، ځکه چې ماشوم پیل او نهنګ نه دی لیدلی، نو معنا هم ورته نشي قایلېدې، نو په دې ځای کې ښه زده کړه نه کېږي. ماشوم باید د ټکو د یو ځای کېدو میخانیک زده کړې چې له یو ځای کېدو جمله جوړېږي، همدا شان دا هم باید زده کړې چې خپل مطلب د زده کړو الفاظو په واسطه څنګه اظهار کړي، غواړي چې په ماشومانو کې دا هنرونه پراختیا ومومي، نـــو ښایي چې دوی ته زیات وخت ورکړل شي او ډېر تمرین وکړي.

**مآخذونه:**


افغانستان پېژندنه، اورنګزېب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴لمریز کال.

د تدریس اصول او مېتود، (۱۹۸، ۲۰۱ مخ پورې)، لیکونکی پوهنوال محمد نادر شاه نیکیار، د پیداګوژۍ دېپارتمنـــت، دښوونې او روزنې پوهنځی، د کابل پوهنتون. دویم چاپ، ۱۳۸۲ لمریز کال.

# یوویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبو نو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | ټوکې ټکالې |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولی شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زه کوونکي به د ټوکو په مفهوم وپوهیږي.<br>ـ زده کوونکي به د ټوکو مطلب نورو ته روښانه کړای شي.<br>ـ زده کوونکي به د ټوکو ټکالو متن ولوستلی او ولیکلی شي.<br>ـ زده کوونکي به په دې پوه شي چې د ټوکو ډېره برخه د ټولنې د اصلاح لپاره ده. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | ډله ییز، دوه کسیز او یو کسیز فعالیت، سوال او ځواب، لوستل او لیکل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، تباشیر یا مارکر، قلم، کتابچه او چارت. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | د ښوونکي د یادښت کتابچه، شفاهي پوښتنې، لیکنۍ پوښتنې او څارنې. |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیمول، د حاضرۍ اخېستلو وروسته کورنۍ دنده کتل او په تخته باندې د کورنۍ دندې لیکل. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | دهمزولو او دوستانو د خوښۍ لپاره کله کله ،نرمې خندنۍ اومناسبې خبرې په څه نامه یادیږي چې تفریحي بڼه لري؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک (ټوکې ټکالې) په ښکلي خط پر تخته و لیکي او زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې په خپلــو کتابو نوکې یې پیدا او ورته متوجه شي.<br>ـ ښوونکی دې لوست په مناسب لوړ آواز ولولي او د لوست پــه بهیر کې دې زده کوونکي وڅاري چې متوجه شي.<br>ـ زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې لوست یو ځل په چوپه خو له له ځان سره ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې و هڅوي چې د ستونزمنو کلمو پوښتنه وکړي او هغه له ځان سره ولیکي.<br>ـزده کوونکي دې په څو ډلوو وېشي او هرې ډلې تــه دې دنــده ورکړي چې یوه ډله دې په خپلو منځو کې لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړي، بله دې د لیکل شوو کلمو متر ادفې کلمې پیدا او په جملو کې وکاروي او په دریمې ډلې دې پنځم فعالیت ترسر ه کړي او ورپسې ډله دې شپږم فعالیت سرته ورسوي.<br>ـ د هرې ډلې استازي ته دې بلنه ورکړي چې د خپلې ډلې د کار څرنګوالی نورو ته تشریح کړي.<br>ـ په څو تنو زده کوونکو دې لوست تکرارکړي څو دا ډاډ ترلاسه کړي چې د زده کوونکو ستونزې حل شوې دي.<br>ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو کې د سیالۍ په توګه ټوکې ووایي چې زده کوونکي له ټوکو سره بلد شي<br>ـ زده کوونکو ته دې دنده وسپارل شي چې د خپلو کورنیو له غړو څخه یوه یوه ټوکه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا یې بله ورځ د ټولګي مخې ته ولولي. | ـ زده کوونکي د روغبړ او کورنۍ دندې له ســمون څخه وروسته د نوي لوست سرلیک ته متوجه کېږي.<br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي لوست تــه متوجــه شي، هڅه دې و کړي چې د کلمو ســم تلفــظ زده کړي.<br>ـ زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم لوست له ځان سره په پټه خوله و لولي.<br>ـ زده کوونکي دې ستونزمنې کلمې په نښه او بیا دې وپوښتي او ځوابونه دې و لیکي.<br>ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونو سره سم په خپلو ډلو کې اړوندې دندې ترسره کړي.<br>ـ د هرې ډلې استازي دې ټولګي مخې ته راشي او د خپلې ډلې دکار څرنګوالی دې د تختې پر مخ نورو ته څرګندکړي.<br>ـ هر زده کوونکی دې هڅه وکړي چې د متن پــه لوستلو کې برخه واخلي.<br>ـ هره ډله هڅه کوي چې د بلې ډلې سره په ســیالۍ کې خپله ورتیا وښیي.<br>ـ زده کوونکي دې خپله کورنۍ دنده له لارښــوونې سره سمه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په کورو کې دې بشپړې کړي. |

**دمتن دستونزمنو برخو روښانول :**

لومړۍ ټوکه هغه لیوني ته ورته ده چې دنایي (سلماني) دچړې دېڅولو په خاطرېي په سرکې میخ ټکوهلو. غوښته یې چې چاړه پځه کړي اوله سرخیرلوڅخه خلاص شي ،نوبل لیوني ته یې وویل چې غټ مېخ راواخله اوزما په سر کې یې ټک وهه. کله چې نایي زماسرخریي نوچاړه به یې ماته شي ، کله چې یې ډېره پورته کړه چې مېخ ټک وهي، نو د هغه لاس یې ونیو، بــل لیوني ترې پوښتنه وکړه چې ولې دې زما لاس ونیوه. هغه ورته وویل وېرېږم چې مېخ به درڅخه خطاشي اوډېره به زما په سر ولګیږي .

په څلورمه ټوکه کې یې دکورخاوند ځکه له ځانه سره ملګری کووچې دهغوی ژوند هم دفقیرغوندې و.

دلغتونو معناګانې.

ټګان: دوکه ماران پته: ادرس پلورونکی: خرڅونکی ظرافت: خاصه ښکلا لرل.

څلورصفتونه : دروغ، اسانتیا ، نرمي ،غوسه، ټګي، ستړیا، لطافت.

**ښوونکي ته اضافي معلومات :**

ټوکې ټکالې زموږپه ټولنه کې له ډېرې لرغونې زمانې رواج لري چې شمېرېې زرګونو،زرګونوکلونو ته رسيږي .
ټوکې ټکالې دبېلابېلو مقصدونو لپاره ويل شوي دي اولکه دلنډيو اومتلونو په شان دټوکوټکالو شمېر هم چاته نه دی معلوم، وخت (تاريخ) اوويونکي يې هم نه دي معلوم. داځکه چې ټوکې اوټکالې دشاعرانو دشعري مجموعو اوديوانو نو په توګه نه دي ترتيب شوي.
خوپښتانه نسلونه يې په پېړيو ،پيړيو يوبل ته سپاري . دادولس لپاره خورالويه شتمني ده. د پوه اوپرمختللي ولس فکر،هوښياري ، ملي تاريخ .ټولنيزژوند ،کره وړه اوعادتونه پکې په ښکاره اوقوي ډول ځرګند شوي دي خوټوکې ټکالې ځانته اوپه ځانګړي ځای کې ويل کيږي .
دټوکو په وسيله خپه زړونه خوشحاليږي .اوترلې شونډې په موسکاراولي .که چيرې ټوکې ويونکی ټوکې په خپل ځای کې استعمال نه کړي، نو د ګټې پرځای يې تاوان زياتيږي، دبيلګې په توګه دغم اوويرپه ځای کې ټوکې کول ښه کارنه دی، ټوکې دانسان دژوند په ټولواړخونو کې برخه لري، همداټوکې دي چې ژوند خوږ وي اوهم يې ترخوي .پخوابه په ځينودرباروونو کې ټوکمارکسان ناست وو اودشاهي کورنۍ غړو ته به يې دهغوی دخوشحالتياپاره ټوکې کولې چې ښه بېلګه يې سلطا ن محمود غزنوي رااخيستلی شو .
دغه رازپه نړۍ اوپه خاص ډول په افغانستان کې ډېرې ټوکې په نصرو پورې تړلې دي .اويادهغه په حواله ويل شوي دي.اوسربېره پردې ځينو هنرمندانو هم ډېرې ټوکې کولې لکه. دننګرهار مشهورسندرغاړی مرحوم حضرت باز ،استاد ګلاجان ،محمددين زاخيل ،حاجي محمد کامران اوهمدارنګه دکوزې پښتونخوا ميرهوس ديادونې وړدي، ټوکې ټکالې دهرکسب اوکارپه اړه خورازياتې دي. دټوکوپه اړه ډېرې لنډۍ ويل شوي دي لکه.

اخترپه ټوکو ټوکو راغی — نه مې اوږۍ شته نه د غاړې تاويزونه
اشناپه ټوکو نه پوهېږې — ما په خورو زلفو واهه مرور شونه
په ټوکو ټوکو مې ګنډله — د اشنا کډه په رينبتياله ملکه ځينه

ماخذ: ټوکې اوټکالې ليکوال اسدالله حصارشاهيوال ۱۳۸۰ ه ج کال

# دوه ویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | د ماشومانو حقونه |
| ۲ | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي، او ذهنيتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به د ماشومانو حقونه وپېژني.<br>ـ زده کوونکي به د ماشومانو حقونو ته پاملرنه وکړي.<br>ـ زده کوونکي به د ماشومانو حقونه نورو ته وويلی شي.<br>ـ زده کوونکي به د ماشومانو د حقونو متن ولوستلی او وليکلی شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | ډله ييز، دوه کسيزه، او يو کسيز فعاليت، لوستل او ليکل، پوښتنې او ځوابونه. |
| ۴ | **د تدریس وسيلې او مرستندوی توکي:** | چارتونه، کارتونه، انځورونه، کتاب، تخته، مارکر، قلم، کتابچه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسيلې:** | د ښوونکي د يادښت کتابچه، شفاهي، ليکنې، پوښتنې او د څارنې ارزونې. |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعاليتونه:** | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيمول، د حاضري اخېستلو نه وروسته د کورنۍ دندې اصلاح او په تخته ليکل. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | انسانان د ژوند په بېلو بېلو دورو کې په بېلو بېلو نومونو يادېږي او بېل بېل حقونه لري پيل يې په څه نوم او حقونه يې کوم دي؟<br>(د ماشومانو حقونه) |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک (د ماشومانو حقونه) په ښکلي خط په تخته ولیکي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته و وایي چې کتابونو ته وګوري او په لوړاو مناسب آواز دې ماشومانو د حقونو متن و لولي.<br>ـ زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې د ماشومانو د حقونو متن له ځان سره په پټه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې په نښه کړي.<br>ـ د ماشومانو حقونه چې د ملګرو ملتونو له خوا تصویب شوي په څو تنو ښېل ښېل ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې په ډلو وویشي یوې ډلې ته دې د ماشومانو د حقونو د نړیوالې اعلامیې په ټکو د خبرو اترو بحث وسپاري.<br>دوهمې ډلې ته دې د موصوف په هکله دنده ورکړي.<br>دریمې ډلې ته دې د لویانو له خوا د ماشومانو راتلونکومکلفیتونو په اړه بحث ورکړي. څلورمې ډلې ته دې په جملوکې د لغتونو ، د استعمالولو لارې چارې وسپاري.<br>په پای کې دې له هرې ډلې یو غړی د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د خپل کار څرنګوالی نورو ته ووایي.<br>ـ په څو تنو دې د لوست متن ولولي او د ماشومانو حقونو په اړه دې ترې پوښتنه وکړي.<br>ـ په پای کې زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د ماشومانو د حقونو په هکله څو کرښې په کور کې ولیکي. | ـ زده کوونکي دې تختې ته پام واړوي او د لوست سرلیک (د ماشومانو حقونه) دې ولولي.<br>ـ زده کوونکي د متن په لوستلو کې د کلمو تلفظ ته پام ور اړوي او سم تلفظ دې وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې د لوست متن په غوراو په پټه خوله له ځان سره و لولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي چې ځان پرې پوه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې په لوستلو کې برخه و اخلي، هره ډله دې خپله دنده په پوره غور ترسره کړي.<br>ـ زده کوونکي دې په ډله ییز فعالیت کې برخه واخلي.<br>ـ په پای کې دې د هرې ډلې یو، یو استازی د ټولګي مخې ته راشي او د خپل کار څرنګوالی دې بیان کړي.<br>ـ هر زده کوونکی دې په وار سره متن و لولي او د ماشومانو د حقونو په هکله دې ځوابونه ورکړي.<br><br>ـ زده کوونکي دې خپله کورنۍ دنده په پوره پاملرنې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

صفت او موصوف:

ملګري ملتونه، سپېڅلی دین، پالونکي مور او پلار، لوړ حقونه، سالمه روزنه، معیوب ماشومان، سالمه مرسته، سمه څارنه.

د لاندینیو کلمو ګرامري اړخ:؛

هغه: اشارې ضمیر، اشاره د لرې لپاره.

چا: استفهامي ضمیر، مبهم ضمیر، د څوک مغیره حالت.

څوک: د غایب مفرد لپاره استفهامي ضمیر.

د فعالیتونو په اړوند معلومات او د پوښتنو ځوابونه:

روزنه: تربیه

درناوی: احترام

تړون: معاهده

څارنه: نظارت

اغېز: تاثیر

**ښوونکي ته اضافي معلومات**

دقران کریم په ایتونو کې  دالله (ج) زیاته مینه دماشومانو سره ښودل شوې ده اوپه البلد سورت کې يې په ماشومانو سوګند کړی دی.  په همدې توګه دالکهف دسورت په ۴۶ ایت کې يې فرمایلي دي چې په ژوندکې مـال اوبچيـان ددنیاښـکلا اوزینت دی. بل ځای کې يې ماشومان دجنت الوتونکي ښودلي دي. یوه ورځ داسلا م ستریپغمبرحضرت محمدﷺ په منبـر ناست واوخلکو ته يې خبرې کولې، ناڅاپه يې خپل لمسیان ولیدل چې دخلکو په منځ کې په ډېروستونزمنو لارو روان دي. حضرت محمدﷺ خپلې خبرې بس کړې ، له منبر څخه کښته شو اودغوماشومانو ته ورغی، دواړه يې له لاسه ونیول. منبرته لاړ اوويې ويل: اې خلکو! په رښتیا چې مال اوبچيان مودازمایښت لپاره دي، په خدایﷻ سوګند چې ماشومان مـې پـه ستونزو کې ولیدل، طاقت مې ونشو چې له منبر څخه کښته نشم اوپه غیږ کې يې ونه نیسم. پـه یـو بـل ځـای کـې دماشومانودحقونو په اړه داسې راغلي دي:

د انسا ن  ژوند له زیږیدنې  څخه پیلیږي اوله هماغه پیل څخه دحقوقو درلودونکی دی.

له دې امله چې  په خپل ژوندانه کې له ستونزو سره مخ نشئ او په ژوندانه کې بریالی وئ لازمه ده چې له هماغه کوچنیوالي څخه دکورنۍ ، ښوونځي او دولت له خوا ورته حقوق ور کړل شي  چې د خپلو حقوقو په راوړلو سره د کورنۍ او ټولنې د خدمت ور وګرځي. ماشوم د خپلې کورنې اوټولنې په غیږ کې د ژوندکولو ، خوراک ، لباس ، جسمي اورواني روغتیـا ، دزده کړې اوپالنې ، جسمي اوذهني انکشاف حق لري .

ماشوم باید د هر ډول توپیر زور اوفشارڅخه وساتل شي ، اوپه یوه ارامه فضا کې ژوند وکړي اوورروزل شي .

ځکه چې نننۍ ماشوم دراتلونکې ټولنې جوړوونکی دی اوستر مسوولیتونه ورته سپارل کیږي .

نن سبا په ټوله نړۍ کې په تیره بیا ددریمې نړۍ په هیوادونوکې ماشومان اوتنکي ځوانان له حقوقوڅخه بې برخې دي  اولـه زیاتومشکلاتوسره مخ دي چې د هغوی په روح اوروان باندې يـې نـاوړه اغیـزه کـړې ده. پـه اوږدو کلونـوکې د ماشومانوحقوقوته پاملرنه نه ده شوې اواوس هم په بیلابیلوبڼو د هغوی حقوق تر پښولاندی کیږي .

خوله نیکه مرغه نن د کورنیو ، نړیوالې ټولنې اودولتونو له خوا دماشوم حقوقو ته توجه شوي ده . ملګروملتونو دماشـوم د حقوقود تامین لپاره په ۴۱ مادوکې قانون تصویب کړ اوهر هیوادیې مکلف کړی دی چې د ماشوم ژوندانه تـه ، اودهغـه جسمي اوروحي انکشاف ته پام وکړي.

 پدې قانون کې له ۱۸ کلنۍ څخه د کم عمر درلودونکي ماشوم بلل کیږي. دهغوی دجسمي اوروحي ودې اوانکشاف لپاره کورنۍ اودولتونه موظف شوي دي .پدې کنوانسیون کې غوښتنه شوي ده چې د ماشوم د حقوقود تامین لپاره عملي ګامونه پورته شي . د کنوانسیون په هره ماده کې دماشوم حقه حقوقوته پام شوی دی چې دلته يې څومادې راوړو :

دویمه ماده : دتوپیر مخنیوی : په دې کنوانسیون کې له توپیر پرته حقوق په ټولوماشومانوپورې اړه لري اودولتونه بایـد د هرډول توپیر په مقابل کې د ماشومانو ملاتړ وکړي .

دریمه ماده : د ماشومانو ګټې : په هر اقدام کې بایدد ماشومانو ګټې په پام کې ونیول شي .که چیرې موراوپلار اود هغـوی

| |
|---|
| سرپرست ورته نظر نه کوي دولتونه باید له ماشومانوڅخه جدي څارنه اوملاتړ وکړي . <br>۲۷ ماده : هرماشوم حق لري د ژوندانه له داسې شرایطو څخه برخه من شي چې دهغه د جسمي ، ذهني ، رواني اواجتماعي ودې ضمانت وکړي . <br>۳۱ ماده : دژوندانه سطحه : دهغه ماشوم حالت چې د دولت له خوا کورنۍ ته سپارل کیږي باید په کلکه ارزیابي شي . له دې امله باید دماشومانوحقوقوته پاملرنه وشي . دولتونه باید د ماشومانولپاره د تفریح زمینه برابره کړی ،ورزشي کلپونه او سالم تفریحي پروګرامونه ورته جوړ کړي .د تلویزیون اوپروجکتور له لارې علمي اوورزشي فلمونه ورته وښودل شـــي. د هغوی لپاره روغتیایي اسانتیاوې ، تفریحي پارکونه او نورې اسانتیاوې برابرې شي. |
| **ماخذ:** <br>د اموزش حقوق طفل، مجله، د افغانستان د حقونو د خپلواک کمیسیون له خپرونو څخه (۱۳۸۲ هــ . ش.) کال. |

# درویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | سیمه ییزې لوبې |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ سیمه ییزې لوبې به وپیژني.<br>ــ د سیمه ییزو لوبو په ګټو به پوه شي.<br>ــ د سیمه ییزو لوبو په مفهوم به وپوهیږي.<br>ــ زده کوونکي به د سیمه ییزو لوبو په برخه کې نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>ــ په ورځني ژوند کې به د سیمه ییزو لوبو په ارزښت پوه شي.<br>ــ زده کوونکي به متن ولوستلی او د نوو کلمو په معنا او جملو کې به یې وکارولی شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | ډله ییز، دوه کسیز او یو کسیز فعالیت، سوال او ځواب، لوستل او لیکل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | انځورونه، چارتونه، کارتونه، تخته، تباشیر، کتاب، قلم، د یادښت کتابچه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | د ښوونکي د یادښت کتابچه، شفاهي، تحریري پوښتنې، څارنه |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | له سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخېستلو وروسته کورنۍ دندې کتل او ځواب یې په تخته لیکل. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ــ تاسې د درس ویلو او په کور کې د کار کولو پرته نور څه کوئ؟<br>په وزګار وخت کې په کور او کلي کې څه کوئ؟<br>لوبې په ټولو ځایونو کې یو شي وي؟<br>علاقه لرئ چې سیمه ییزې لوبې وپیژنئ! |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ــ د لوست سرلیک (سیمه ییزې لوبې) دې په تخته و لیکي.<br>ــ ښوونکی دې لوست په مناسب اولــوړ آواز و لــولي او زده کوونکي دې ورته متوجه کړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې لوست له ځان سره په پټه خوله ولولي.<br>ــ ښوونکی دې لوست په څو تنــو زده کوونکــو داســې ولولي چې د ټولګي مخې ته راشي او نور ورته غوږ ونیسي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلو ووېشي، یوې ډلې ته د خوسي، بلې ته د چیندرۍ او بلې ته دې د توپ ډنډې لوبې و سپاري چې په خپلو منځو کې پرې خبرې وکړي.<br>ــ له هرې ډلې څخه یو ه غړي ته بلنه ورکړي چې د خپلې ډلې کار په برخه کې نورو ته معلومات ورکړي.<br>ــ ښوونکی دې د متن پوښتنې له بېلا بېلــو زده کوونکــو څخه وکړي.<br>ــ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې د متن لغتونــه د مخامخ کلمو څخه معنا او په جملو کې استعمال کړي.<br>ــ زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د خپلې سیمې د یــوې لوبې د ترسره کولو څرنګوالی و لیکي او په بلــه ورځ دې نورو زده کوونکو ته ووایي. | ــ زده کوونکي دې له روغبړ او کورنۍ دندې له اصــلاح څخه وروسته د نوي لوست سرلیک ته متوجه شي.<br>ــ زده کوونکي دې د ښوونکي لوستلو ته پام و اړوي چــې سم تلفظ زده کړي.<br>ــ زده کوونکي دې درس له ځان سره په پُټه خوله و لولي او د ستونزمنو کلمو پوښتنه دې وکړي.<br>ــ زده کوونکي دې  په وار سره متن  ولولي، نور دې ورته غوږ و نیسي.<br>هره ډله دې د لارښوونې سره سم په خپلــه برخــه کــې کاروکړي.<br>ــ د هرې ډلې یو غړی دې د ټولګي مخې تــه راشــي او د خپلې ډلې د کار څرنګوالی دې نورو ته بیان کړي چــې د هرې ډلې له معلوماتو څخه ټول برخه من شي.<br>زده کوونکي دې په ډېر احترام ځواب و وایي.<br>ــ زده کوونکي دې  د متن د لغتونو معنا په ورکړل شــوو معناوو کې وګوري او په جملو کې دې استعمال کړي.<br>ــ زده کوونکي دې په کورنۍ دندې ځان وپوهوي او بلــه ورځ دې ترسره کړې  دنده ټولګیوالو ته و وایي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

چیندرۍ او پټپټانی د نجونو ترمنځ په پوره مینه ترسره کېږي.

د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:

د لغتونو معناګانې:

نړیوالې: جهاني

سیمه ییزې: محلي

میر: د ډلې مشر

ډوبۍ: د خاورو کوچنۍ ډېرۍ

تیږه: ګټه، ډبره

دود: رواج

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

زمونږ ګران هېواد افغانستان د نورو هېوادونو په څېر په هره برخه کې هر څه لري، خو په ځينو برخو کې ورڅخه استفاده شوی او ځينې برخې همداسې بکرې پاتی شوې دي او په نړيوال ډول نه دي پېژندل شوي او که کومې پېژندل شوي، نو د هغوی لپاره امکانات په نظر کې نه دي نيول شوي چې ښې بېلګې يې زمونږ ولسي لوبې دي. دا لوبې په کور، کلي کې رواج لري او همداسې د کور او کلي په منځ کې پاتې شوي دي او له کلونو کلونو څخه له يو نسل څخه بل نسل ته په ميراث پاتې دي او را روانې دي چې ښې بېلګې يې په لاندې ډول دي: خوسې، توپ ډنډه، ډی، لوڅ، قوتی، چينډرۍ، ميرګاټ، کربښې، پټپټانې، وزلوبه، پړي کشول، شيطان مايه، منګي مات، سرشوکانې، بډۍ يا کوډۍ، الوځول، ګاټي يا پنځه ګانې، واوره وېشتل، چار خط، د مچنوغزه او لينډۍ لوبه، ګاډوله ځغلول، شمبه رات، غوزلوبه، کربښې، د ځنګله بلا او داسې نورې، خو دا هغه لوبې دي چې د افغانستان په بېلا بېلو خلکو سيمو او بېلا بېلو ولسونو کې دود دي، زياتره يې د کوچنيانو او زلميانو دي، ځينې يې د لويانو هم دي لکه، وزلوبه، پړی کشول، تېږه اچول، توپ ډنډه او داسې نورې، ځينې داسې لوبې بيا هم لرو چې هغه يا له ډېره پخوا څخه له نورو همسايه ملکونو څخه راغلي او يا همدلته منځ ته راغلي دي، په هر صورت اوس مهال زمونږ د هېواد په ګوټ ګوټ کې رواج شوي او په دې وروستيو کې يې داسې مينه وال پيدا کړي چې دې مينوالو يې بې له استادانو هم نړيوالو لوبو ته لاره پرانيستې. چې ښې بېلګې يې کرکټ او د تکواندو مشهورې لوبې دي چې په دې دواړو لوبو کې افغاني زلميانو د نړيوالو اتل وليو کپونه ترلاسه کړي دي او په مېړانه او شهامت سره افغانستان ته راستانه شوي دي، خو د دې ترڅنګ ځينې داسې نړيوالې لوبې دي چې هغه هم په افغانستان کې رواج دي، افغاني زلميان په هغو کې لاس بری لري، لکه بايسکل ځغلونه، باسکټ بال، هاکي، لامبو وهل، سوک وهنه، ټينس، پهلواني، ځغاسته او داسې نورې.

**ماخذونه:**

د ماشومانو ولسي لوبې.

د تربيت بدني مجلې بېلا بېلې ګڼې.

# څلرویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | لاسي صنایع |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به لاسي صنایع وپېژني.<br>ـ د لاسي صنایعو په مفهوم به پوه شي.<br>ـ د لاسي صنایعو په تاریخي ارزښت به پوه شي.<br>ـ د خپل هېواد د مختلفو سیمو په لاسي صنایعو به خبرې وکړي.<br>ـ د لاسي صنایعو متن به سم ولیکلی او ولوستلی شي.<br>ـ د مختلفو لاسي صنایعو له نومونو سره به آشنا شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | یو کسیز، دوه کسیزه، او ډله ییزه فعالیتونه، لیکل او لوستل، پوښتنې |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | کتاب، تخته، قلم، تباشیر، د څو لاسي صنایعو چارتونه، او د کلمو د جوړښت کارتونه او د ښوونې او روزنې وزارت درسمي کارونو د صالون یادونه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي پوښتنې، لیکنۍ پوښتنې، څارل، سوال او ځواب، د ښوونکي د یادښت کتابچه |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام، روغبړ، د ټولګي له تنظیم، د حاضرۍ له اخېستلو او کورنۍ دندې له کتلو څخه وروسته کورنۍ دنده د یو زده کوونکي په واسطه په تخته لیکل او زده کوونکو ته دنده ورکول چې خپلې کورنۍ دندې ورسره پرتله او اصلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | پخوا چې ماشینونه نه وو خلکو کالي او د اړتیا وړ توکران په څه شي جوړول؟<br>دغه جوړ شوي توکران او نور د اړتیا وړ شیان په څه نامه یادېږي؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ ښوونکی  دې د نوي لوست سرلیک (لاسي صنایع) په تختې و لیکي او زده کوونکي دې و هڅوي چې په کتاب کې یې پیدا کړي.<br>ـ ښوونکی دې لوست په مناسب او لوړ آوازو لولي او زده کوونکي دې وڅاري چې لوست ته پام واړوي او سم تلفظ زده کړي.<br>ـ زده کوونکي دې و هڅوي چې د لوست متن په پټه خوله له ځان سره ولولي.<br>ـ ښوونکی دې څو تنو زده کوونکو ته په وار بلنه ورکړي چې متن د کتاب له مخې د ټولګي په مخکې ولولي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په درې ډلوو وبشي، یوې ډلې ته دې دنده ورکړي چې متن په خپلو منځو کې ولولي او د فعالیت تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي.<br>بلې ډلې ته دې دنده ورکړي چې دمتن له لوستلو وروسته د پنځم فعالیت ځواب پیدا کړي، بله ډله دې وګماري چې د اتم فعالیت ځواب پیدا کړي.<br>ـ بیادې د هرې ډلې یو غړی د ټولګي مخې ته را وغواړي چې د خپلې ډلې د کار څرنګوالی نورو ته تشریح کړي.<br>ـ ښوونکی دې بېلو بېلو زده کوونکو ته په وار بلنه ورکړي چې د لومړي، دویم، دریم او څلورم فعالیت پوښتنو ته ځوابونه ووایي.<br>ـ دوه درې زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته را وغواړي چې له یاده  دلاسي صنایعو په برخه کې نورو ته معلومات ورکړي.<br>ـ ښوو نکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د خپلې سیمې لاسي صنایعو په اړه لس لس کرښې کورنۍ دنده ترسره کړي. | ـ زده کوونکي دې تختې ته پام و اړوي او د لوست سرلیک  دې ولولي او په کتاب کې دې پیدا کړي.<br>ـ زده کوونکي  دې  دښوونکي لوستلو ته پام و اړوي او د نووکلمو سم تلفظ دې زده کړي.<br>ـ زده کوونکي دې  د لوست متن له ځان سره ولولي او د ستونزمنو کلمو پوښتنه دې وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په وار سره د متن په لوستلو کې برخه  واخلي او ستونزمنې کلمې دې  ښې تکرارکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې اړوندې دندې ترسره کړي او د خپلو پوښتنو ځوابونه دې پیدا کړي.<br>ـ له هرې ډلې دې یو غړی د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې ډلې د کار په باره کې دې نورو ته معلومات ورکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي او ځوابونه دې و وایي.<br>ـ زده کوونکي دې ورته پام واړوي او د نورو صنایعو نومونه  دې له ځان سره و لیکي.<br>ـ زده کوونکي دې په کورنۍ دنده باندې ځان وپوهوي چې د بلې ورځې لپاره یې ترسره کړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

ښځینه نومونه: کړکۍ، الماریۍ، دروازې، چوکۍ ، بېه، بانډه، غالۍ، شړۍ، خامتا، جرابې، څپلۍ، څمڅۍ، ټوکرۍ، ښاخۍ، وړۍ، خولۍ.

**د فعالیتو په  اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

په لوست کې پنځه ښځینه نومونه پیدا او په جملو کې یې وکاروئ.

کړکۍ، الماریۍ، دروازې، چوکۍ (ښځینه نومونه)

بغلان، کونړ، لوګر، نورستان، میزونه (نرینه نومونه)

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

د خلکو د ګټې اخیستنې لپاره د شیانو د استحصال، کیفیت او بڼې بدلون ته صنعت ویل کېږي، چې د اقتصاد د علم له نظره یوه تولیدي پروسه ده، چې له خامو موادو لکه وړۍ، پنبه، پوستکي او نورو څخه د انسان د مټ قوت او ځواک په واسطه ترې کار اخیستل کېږي.

په دې کې شک نشته، چې صنایع د هر هېواد په اقتصاد کې ستر ارزښت او اهمیت لري. د همدې صنایعو د پیاوړتیا پــه نتیجه کې د بهرنۍ سوداګرۍ نا انډولي له منځه ځي. د صنایعو د رامنځ ته کېدو په اړه باید ووایو، چې په لرغونو زمانو کې ، چې د ښاروېو او کرنې محصولاتو د خلکو اړتیاوې پوره کولای نه شوې نو وګړو د کرنې ودې ته ډېر پام واړاوه، نو ځکه يې د اړتیا له مخې د کار اسبابونه جوړ کړل، چې همدا د لومړي صنعت پیلامه وه او بیا کله چې یې د فلزاتو ویلې کول زده کړل. دا د صنعت دویم پړاو بلل کېږي، چې د ماشین تر اختراع پورې د عنعنوي صنعت لړۍ روانه وه، چې وخت په وخت پکې د ذوق او اړتیا له مخې کیفي بدلونونه رامنځ ته کېدل، تر څو چې په ۱۸ مې میلادي پېړۍ کې په انګلستان کې صنعتي انقلاب رامنځته شو، چې له دې سره په ټوله نړۍ کې ژور بدلونونه رامنځته شول.

په هېواد کې اوس تر پنځوسو ډولو نو پورې د اړوند و لاسي صنایعو اتیا زره وړې دستګاوې شته چې د هېواد په سلو کـــې ۱۸ وګړي پکې کار کوي.

په ۱۳۵۰ هــ .ش. کال یعنې د دریم پنځه کلن پلان په پای کې د هېواد د لاسي صنایعو د تولیداتو ارزښت ۵،۴ ملیـــارده افغانۍ ښودل شوې و چې د هېواد د ملي عایداتو په سلو کې اتمه برخه وه. دغه اندازه په ۱۳٦۴ هــ . ش. کې ۱۴،۸۱ ملیارده افغانیو ته رسېده چې د تولیداتو زیاته برخه یې په کورنیو کې ترلاسه شوې چې ښځو او ماشومانو پکې په ځـــانګړې توګه ګټوره ونډه درلوده.

**ماخذونه:**


۱- جغرافیایي اقتصادي افغانستان، پوهاند محمد ظریف تنیوال او پوهاند حمیدالله امین کابل پوهنتون، خپرونې لړ ۵٦.

۲- افغانستان پېژندنه، اورنګ زېب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴ کال، پېښور.

# پنځه ویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | څلوریزې |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ زده کوونکي به څلوریزې وپېژني.<br>ـ د څلوریزو په مفهوم به پوه شي.<br>ـ د څلوریزو د جوړښت او موضوع په هکله به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>ـ د څلوریزو متن به سم ولوستلی شي.<br>ـ په پښتو ادب کې به هغه شاعران وپېژني چې زیاتې څلوریزې یې ویلې دي.<br>ـ د څلوریزو په لوستلو سره به زده کوونکي د نوو کلمو له معناوو او کـــارولو سره بلد شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | یو کسیز، دوه کسیز، ډله ییز فعالیت، لوستل او لیکل، پوښتنې. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | د څلوریزو چارتونه، کارتونه، کتاب، تخته، مارکر. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي پوښتنې، تحریري پوښتنې، فردي کار، ډله ییز کار، سوال او ځواب |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخېستلو او کورنۍ دندې لـــه کتلـــو وروسته د یوه زده کوونکي په واسطه په تختې د کورنۍ دندې لیکل چې نور زده کوونکي ورسره خپلې دندې پرتله او اصلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ـ د شعر څو ډولونه پېژنئ؟<br>ـ دڅلوریزې په نامه موکوم شعر اورېدلی یالیدلی دی؟<br>ـ څه ډول شعر د څلوریزې په نامه یادېږي؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
| --- | --- |
| ـ د نوي لوست سرلیک (څلوریزې) دې په تخته و لیکي او د زده کوونکو پام دې ورته و اړوي.<br>ـ د کتاب لوست دې په لوړ اومناسب آوازو لولي او زده کوونکي دې په لوستلو کې و څاري.<br>ـ ښوونکی د ې دزده کوونکو ستونزمنو کلمو ته ځواب و وايي.<br>ـ څو زده کوونکو ته دې بلنه ورکړي چې متن د کتاب له مخې ولولي او له نوو کلمو سره اشنا شي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلوو وېشي يوې ډلې ته دې د کاظم خان شيدا، بلې ته د اشرف خان هجري، بلې تــه د شمس الدين کاکړ، بلې ته د خوشحال خان خټک او بلې ته د عبدالقادر خان خټک څلوريزې چې په متن کـې راغلـې وسپاري چې په جوړښت او معنا يې خبرې وکړي.<br>ـ د هرې ډلې يو غړی دې د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د خپلې ډلې نظر او فعاليت نورو ته وړاندې کړي.<br>ـ څو تنه زده کوونکي په وار سره د ټــولګي مخــې تــه راغواړي او د فعاليتونو ځوابونه ترې غواړي.<br>ـ زده کوونکو ته دې کورنی دنده ور کړي چې د کتاب د څلوريزوغوندې نورې څلوريزې د بلې ورځې لپاره و ليکي. | ـ زده کوونکي دې د روغبړ او سلام له ځواب نه وروسته د څلوريزو سرليک په کتابونو کې پيدا کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د کتاب لوست ته پوره پاملرنه وکړي او د لوست د کلمو تلفظ دې زده کړي او ستونزمنې کلمــې دې په نښه کړي.<br>ـ د ستونزمنو کلمو حل ته دې پام واړوي .<br>ـ زده کوونکي دې په خپل وار متن و لولي او د نوو کلمو زده کړې ته دې توجه وکړي.<br>ـ هره ډله دې خپله دنده په نظر کې ونيسي او پــه خپلــو منځو کې دې د ورسپارل شوو څلوريزو په جوړښت او معنا بحث او خبرې وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې خپل استازی و ټاکي او د ښوونکي لــه لارښوونې سره سم دې د ټولګي مخې ته راشي او خپل نظر دې نورو ته وړاندې کړي.<br><br>ـ زده کوونکي دې د فعاليتونو ځوابونه وايي.<br><br>ـ زده کوونکي دې په کورنی دند ې ځان و پوهــوي او د بلې ورځې لپاره دې اماده کړي . |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

د کاظم خان شيدا صاحب د شعر مطلب: څومره چې الله تعالی انسان ته سرلوړي ور په برخه کوي هغومره يې هم تواضع او خاکساري ورکړي.

د اشرف خان هجري صاحب د شعر مطلب: د دنيا مال او دولت که څوک د ټولنې په ګټه ونه کاروي ترې پاتې کېږي، بيا که هرڅومره ارمان وکړي، ځای نه نيسي.

د شمس الدين کاکړ صاحب: ښکاري مرغان چې نور آزاروي او له غوښې يې کار اخلي، نوکان او مښوکې يې کـــږې دي. دغسې که چا خپل بار کوږ تړلی وي، هم منزل ته نه رسېږي، ځکه نو بايد د بل له آزار نه خوند وانه خلو.

رحمان بابا وايي چې سوګند خوړونکي او دروغجن خلک د اشنايي وړ نه دي. عبدالقادر خټک بې عمله او بې علمه خلک د تاوان سره مخامخ کېدونکي ښودلي که هر څومره بخت او طالع هم ولري.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

**د دریم فعالیت لغتونه:**

سوګند: قسم

مل: ملګری

منقار: مښوکه

بې پته: بې عزته

**د څلورم فعالیت مترادف:**

مساعد: برابر

غوندې: مشابه

ډول: قسم، رنګ

ښادي: خوښي

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

څلوریزې د پښتو له مشترکو نظمونو څخه هغه ډول دی چې درې مصرع یې د قافیې کلمې ولري یعنې لومړۍ، دویمــه او څلورمه مصرع کې یې قافیه وي او دریمه مصرع یې له قافیې ازاده وي.

څلوریزه هغه شعري فورم دی چې له عربي څخه پښتوته راغلی دی . دافورم څلورمصرې لري ، له ځینو استثنایي حالاتو پرته چې په هغه کې کېدای شي ددرېمې مصرې یوه څپه دقافیه والو مصرو له څپو څخه کمه یازیاته شــي پــه تــو لیــز ډول دټولوڅلورواړو مصرو د څپو شمېره سره مساوي وي. دڅلوریزې لومړی بیت مقفی وي ، دریمه مصره یې قافیه نــه لــري اودڅلورمې مصرې قافیه یې دمطلع قافیه تعقیبوي .ردیف پکې اختیاري وي خو کله چې دڅلورېزې په مطلع کــې ردیــف راوړل شو څلورمه مسره کې به ضروربیا هماغه ردیف تکرارېږي.په پښتوکې د ښلابښلو څپو په شمېررباعي ویل شــوي دي خولس څپیزې څلوریزې په کې زیاتې دي .داڅلوریزې اکثره په تول تللې دي.لس څپیزې داهنګ له مخې پــه دوو برخــو ویشل کیږي، پنځه یوه خوا اوپنځه بله خوا دپښتوژبې د سترشاعرخوشحال خان خټک په څلوریزوکې کابو ۸۵ فیصده لس څپیزې دي، همداشان اروابښاد قیام الدین خادم هم دخوشحال بابا په پله پل ایښی دی، دده څلوریزې هم لس څپیزې دي.

وګـــــړي واړه کــــــارونه خپل کا
مــردان هغه دي چــــې کار د بل کا
څــوک چې آرام ګټي د نیکو نام ګټي
د خوړو زړونو دارو به تـــــــل کا

۞ ۞ ۞

مال دې په کور کې که زر که سل وي
دا ګمان مه کړه چې ستـــا به تل وي
بهره په ورکړه ځینی حــاصـــل کړه
دا چې نن ستا دي سبـــا د بل وي

۞ ۞ ۞

علـــم وکړئ غـــــریزه خــــویه
فهــــم پــه علم په عمل بـــــویه
کمکیه ونــــه بارداره ښــــه ده
نه پلنه ونه بې بـــــــاره لـــــویه

۞ ۞ ۞

ادب چې نه وي په سپین په تــــورکې
عزت به نه وي په هغه کـــــورکښې
دولت بـــه درومي له هغه‌خلقـــــه
چې سره تل وي په شروشـــــور کې

۞ ۞ ۞

آزار دخـــــولې دی آزار د لاس دی
له دواړوخـــلاص دی هغه چې ناس دي
ســـړی بــــه نه وي هغه بــه دد، وي
چې په دا واړه توکــه المـــــاس‌دي

۞ ۞ ۞


**ماخذ :** دپښتوچاربیتې (قلمي ) باغ وبهار، قاضي عبدلحلیم اثرافغاني .

دپښتوشعرهندسي جوړښت، مولف پوهیالی محمد اسماعیل یون: دانش کتابخانه ، ډهګي نعلبندي قــصه خــواني پــشاور ۱۳۷۷ لمریزکال.

رسا، سید رسول، ارمغان خوشحال، یونیورسیتی پېښور، د چاپ کال ۲۰۰۱ م.

خټک، عبدالقادر ګلدسته(د ګلستان پښتو ژباړه) د علومو اکادمی، کال ۱۳۸٦

# شپږویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | ګل پاچا الفت |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ ګل پاچا الفت به وپېژني.<br>ـ د ګل پاچا الفت په علمي او فرهنګي هلو ځلو به پوه شي.<br>ـ د ګل پاچا الفت له نظمي او نثري کتابونو سره به بلد شي.<br>ـ د ګل پاچا الفت د لوست متن به سم ولوستلی شی او د الفت په اړه به نور معلومات وړاندې کړای شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | یو کسیز، دوه کسیز، ډله ییز، فعالیت، سوال او ځواب، لوستل او لیکل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | د ښوونکي چمتو کړي کارتونه، د الفت صاحب انځور او د اثارو چارت، کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر یا مارکر، قلم او کتابچه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي، لیکنې، پوښتنې ځارنه او د ښوونکي د یادښت کتابچه |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ټولګي ته له ننوتلو سره سم له سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخېستلو څخه وروسته د کورنۍ دندې کتل او په ښه خط په تخته لیکل چې زده کوونکي خپلې دندې ورسره پرتله او اصلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ـ ستاسو په کلیو او بانډو کې شاعران شته؟<br>ـ زموږ د هېواد پېژندل شوي شاعران څوک دي؟<br>ـ تاسې په معاصرو شاعرانو کې کوم شاعران پېژنئ؟ |

| د ښوونکي فعالیتونه: | د زده کوونکو فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ ښوونکی د نوي لوست سرلیک (گل پاچا الفت) دې په تخته ولیکي او د زده کوونکو پاملرنه دې ورته و اړوي.<br>ـ ښوونکی دې نوی لوست په مناسب او لوړ آواز داسې و لولي چې زده کوونکي په پام کې ونیسي.<br>ـ ورپسې د مور په اړه شعر او د مزار لوحه دې په مناسب اولوړ آوازو لولي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکوته لارښوونه وکړي چې نوی لوست په پټه خوله له ځان سره ولولي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په درې ډلو و وېشي، یوې ډلې ته د گل پاچا الفت د پېژندنې، بلې ډلې ته د مور په اړه شعر او دریمې ډلې ته دې د مزار لوحې د متن لوستل او په خپلو منځو کې پرې د خبرو اترو دنده و سپاري.<br>ـ ښوونکی دې د هرې ډلې یو غړی د ټولگي مخې ته راوغواړي چې د خپلې ډلې د کار په برخه کې نورو ته معلومات ورکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې په متن کې د ورکړل شوو لغتونو معنا په مخامخ برخه کې پیدا او په کتابچو کې ولیکي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکوته دنده ورکړي چې په متن کې دورکړ شووکلمو څخه نومونه، صفتونه، نرینه او ښځینه نومونه پیدا او په خپلو کتابچو دې ولیکي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي دې ته و هڅوي چې ورکړل شوي کلمې داسې ترتیب کړي چې یوه معنا لرونکې جمله ترې جوړه کړي.<br>ـ ښوونکی دې د متن یو پراگراف په لوړ غږ داسې ولولي چې زده کوونکي یې د املاء په ډول و لیکي.<br>ـ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې د مزار لوحه په کور کې ولولي اوپه اړه یې پنځه کرښې د کورنۍ دندې په توگه ولیکي او بله ورځ یې په ټولگي کې ولولي. | ـ زده کوونکي دې د لوست عنوان (گل پاچا الفت) په کتابونو کې پیدا کړي او پام دې ورته و اړوي.<br>ـ زده کوونکي دې د متن د لوستلو په وخت کې د کلمو تلفظ ته پام و اړوي چې سم تلفظ زده کړي.<br>ـ زده کوونکي دې په پوره مینه غوږ ورته کېږدي.<br>ـ زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم په چوپه خوله متن ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې له خپلې دندې سره سم متن و لولي او په خپلو منځو کې دې پرې خبرې وکړي او د ستونزو په هکله دې له ښوونکي څخه پوښتنه وکړي.<br>ـ له هرې ډلې څخه دې یو غړی د ټولگي مخې ته راشي، خپله ورسپارل شوې برخه دې نورو ملگرو ته ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې د متن د لغتونو معنا په مخامخ برخه کې ومومي او په کتابچو کې دې ولیکي .<br>ـ زده کوونکي دې په ورکړل شوو کلمو کې نومونه، صفتونه، نرینه او ښځینه نومونه پیدا او په کتابچو کې دې ولیکي.<br>ـ زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم کار وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې کلمې په دقت سره ولولي او جملې دې ور څخه جوړې کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د لوستل شوي متن املاء ولیکي.<br>– زده کوونکي دې له لارښوونې سره سم کورنۍ دنده تر سره کړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

د مزار په لوحه کې یو اجتماعي درس پروت دی. الفت صاحب ټینګار کوي چې مور ته لازمه ده چې د خپلو بې وزلو ورونو سره مرسته وکړو او د دې پر ځای چې د ناوړه عنعنو په پاللو پیسې وګرځو او لګښتونه کوو نو هغه خپلو بې وزلو مسلمانانو ورونو ته ورکړو او لاس نیوی یې وکړو.

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

**د فعالیتونو د لغتونو معنا کول:**

ځلېدل: پړ کېدل

ونډه: برخه

بلایي: شتمني

بله: روښانه

ډیوه: څراغ

کوټنی: وړه کوټه

مړی: ډوډۍ

لاندې کلمې ولولئ، لومړی نومونه، صفتونه او بیا نرینه او ښځینه نومونه سره جلا کړئ.

نومونه: غړی، موټی، هدیره، عزیز خان کڅ، پښتو ټولنه، ونډه.

صفتونه: ښه، خوړ، رښتینی، غریب

د کلمو له ترتیب سره معنا لرونکی جمله:

کور په کور او کلي په کلي به ګرځېدم، د خدای ﷻ په نامه به مې څه غوښتل.

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**اروابناد ګل پاچا الفت**

په هره ټولنه کې بېلا بېل وګړي ژوند کوي، خو ځینې د ځان په فکر کې وي، او ځینې داسې هم دي چې فکر او ژوند یې د ځان لپاره نه، بلکې د ټولنې او بشریت لپاره وي، خو دغه ډول انسانان د ټولنې د پرمختګ او هوسایني او د بشریت ریښتینې کامیابي غواړي. اروابناد استاد ګل پاچا الفت هم د ټولنې او د بشریت لوی خوا خوږی و. اروابناد ګل پاچا الفت په ۱۲۸۸ هـ . ش کال. د لغمان ولایت د عزیز خان کڅ په منصور کلي کې زېږېدلی، د پلار نوم یې میر سید پاچا او د نیکه نوم یې سید فقیر پاچا دی.

اروابناد استاد ګل پاچا الفت په کوچني والي کې د ښوونځي او پوهنځي دروازه نه ده ورخلاصه کړې، بلکې دیني زده کړې یې د خپلې سیمې له جهیدو علماؤ و څخه کړې دي. صرف، نحوه، منطق، تفسیر، معاني، بیان او احادیث یې ولوستل د خپلې مورنۍ ژبې سربېره یې دري، عربي هم زده کړه او په دغو ژبو کې یې داسې ژورې او پرله پسې مطالعې وکړې او د همدغو مطالعو او ژورو څېړنو برکت و چې د لومړي ځل لپاره په کال ۱۳۱۴هـ . ش. کې د انیس په جریده کې د کاتب په توګه وګمارل شو، خو له دې دندې سره سره یې په ۱۳۱۵ هـ . ش کال کې د کابل د ادبي انجمن غړی شو، په ۱۳۱۶ هـ . ش. کال د پښتو ټولنې له غړیتوب سره د زیري جریدی مسؤول مدیر وټاکل شو، په ۱۳۱۸ هـ . ش. کې د پښتو ټولنې د صحافت د مدیر مرستیال شو. په ۱۳۱۹هـ .ش کال. کې د پښتو ټولنې د لغاتو د قواعدو د څانګې مدیر شو. په ۱۳۲۰ هـ .ش. کال کې د اصلاح د ورځپاڼې مشاور شو.

بیا د پښتو ټولنې عمومي مبصر او د کابل مجلې چلوونکی شو. په ۱۳۲۵ هـ .ش کال. کې د اتحاد مشرقي مدیر شو. په ۱۳۲۷ هـ. ش. کال په ننګرهار کې د قبایلو عمومي مدیر شو. په ۱۳۲۸ هـ.ش. کال د جلال اباد د خلکو له خوا د ملي شورا په اوومه دوره کې وکیل وټاکل شو او په ملي شورا کې د دویم مرستیال دنده ورته وسپارل شوه. په ۱۳۳۱هـ.ش کال. کې د لغمان د قرغیو د خلکو له خوا د شورا اتمې دورې ته وکیل وټاکل شو. په ۱۳۳۵ هـ.ش کال. کې په لومړنۍ رتبه د پښتو ټولنې رئیس وټاکل شو او هم د پوهنې وزارت د عالي شورا په غړیتوب ومنل شو او ورسره د کابل پوهنتون د حقوقو د پوهنځي او د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د استادۍ سپېڅلی دنده هم ور په غاړه شوه. په کال ۱۳۳۸ هـ.ش. کال کې د افغان شوروي د دوستۍ د ټولنې رئیس هم شو، په همدې ترڅ کې د ۱۳۳۰ هـ .ش. کال له غبرګولی څخه ۱۳۳۲ هـ .ش. کال د لړم د میاشتې تر پایه پورې د ولس د ملي جریدې د امتیاز خاوند هم و. په ۱۳۴۳هـ.ش. کال په لویه جرګه کې چې د نوي اساسي قانون د تصویب لپاره جوړه شوې وه، غړیتوب درلود. په ۱۳۴۴ هـ.ش. کال کې د قبایلو مستقل رئیس شو. په ۱۳۴۸هـ.ش. کال د ولسي جرګې په دیارلسمه دوره کې منتخب استازی شو. د دولتي دندو ترڅنګ ده خپل قلم داسې چلولی دی چې یو زیات شمېر کتابونه یې د خپلې ټولنې د سمون لپاره لیکلي او یا ژباړلي دي چې نومونه یې په دې ډول دي: د پسرلي نغمه، عالي افکار، د ازادۍ پیغام، غوره اشعار، د زړه وینا، ښه لمسون، پښتو سندرې، ادبي بحثونه، لوړ خیالونه او ژور فکرونه، لیکوالي او انشاء، ملي قهرمان خوشحال خان خټک، نوی سبک او نوی ادب او داسې نور، خو د دې کتابونو ترڅنګ یې په سوونو مقالې لیکلي دي او د هېواد په مطبوعاتو کې چاپ شوي دي. د دې ترڅنګ اروابناد ګل پاچا الفت ډېرو هېوادونو ته علمي او سیاسي سفرونه کړي دي او په ډېرو کورنیو او بهرنیو علمي سیمینارونو کې یې کارنده ونډه اخیستې ده. د ژوند تر پایه پورې یې خپل قلم نه دی درولی. اروابناد ګل پاچا الفت چې په کومو مقامونو کې کار کړی، بیا یې هم له خورانو او فقیرانو نه ځان بېل نه دی ګڼلی، فقیري او درویشي یې په امیري ورنه کړه، لکه دی چې خپله وایي:

زړه یې مه بوله تور کاڼي د صحرا دی     په لیدو د زخمي زړه چې زخمي نه شي

په ۱۳۵۶کا ل یې له دې نړۍ څخه ابدي نړۍ ته مخه کړه او د لغمان ولایت د عزیز خان په کڅ کې د کابل د سیند د ګلکڅونو او د وریښمو د لارې په څنګ کې په یوه وړوکې شانتې غونډۍ کې خاورو ته سپارل شوی دی.

**ماخذونه:**


غوره نثرونه.ګل پاچاالفت .

د الفت نثري کلیات ګل پاچاالفت

الفت مجله.

# اوویشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| د مطلبونو شرحه | د مطلبو نوسرلیکونه: | ګڼه |
|---|---|---|
| احمد شاه بابا | **د لوست موضوع:** | ۱ |
| د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ احمد شاه بابا به وپېژني.<br>ـ احمد شاه بابا به د افغانستان د یو ټولواک په توګه وپېژني.<br>ـ د احمد شاه بابا په سیاسي، علمي، فرهنګي او اجتماعي هلو ځلو به پوه شي.<br>ـ په پښتو ادب کې به د احمد شاه بابا په ادبي دریځ پوه شي.<br>ـ د احمد شاه بابا د لوست متن به سم ولوستلی، ولیکلی او نورو ته به یې ښکېنې وویلی شي. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | ۲ |
| یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییزې، فعالیت، لوستل او لیکل، سوال او ځواب. | **د تدریس لارې:** | ۳ |
| د جرګې انځور، چارتونه او کارتونه، د احمدشاه بابا انځور، کتاب، قلم، کتابچه، تخته، تخته پاک، مارکر او یا تباشیر. | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | ۴ |
| شفاهي، لیکنې، پوښتنې او د ښوونکي د یادښت کتابچه، سوال اوځواب، د زده کوونکو څارنه | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | ۵ |
| ټولګي ته د ننوتو سره له سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخېستلو او کورنۍ دندې له کتلو وروسته خپله او یا د زده کوونکي په و اسطه کورنۍ دنده په تخته ولیکي او زده کوونکو ته بلنه ورکړي چې خپلې کورنۍ دندې ورسره پرتله او اصلاح کړي. | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ٦ |
| زموږ په خلکو کې د بابا په نامه کوم کسان یادېږي؟<br>د افغانستان په تاریخ کې داسې څوک پېژنئ چې د معاصر افغانستان بنسټ اېښودونکی وي؟<br>د افغانستان په وروستیو پېړیو کې څوک د شورا او مشورې له لارې واکمن شو؟ | **د انګېزې رامنځته کول:** | ۷ |

| د زده کوونکو فعالیتونه: | د ښوونکي فعالیتونه: |
|---|---|
| ـ زده کوونکي دې د لوست سرلیک (احمد شاه بابا) پــه کتاب کې پیدا او پاملرنه دې ورته وکړي.<br>ـ زده کوونکي دې د لوست تلفظ ته ځیر شي چې کلمــې سمې ولولي.<br>ـ زده کوونکي دې لوست په چوپــه خولــه و لــولي او د ستونزمنو کلمو پوښتنه دې وکړي.<br>ـ د هر بیت مفهوم تــه دې پــام و اړوي او د ښــوونکي لارښوونې دې له ځان سره و لیکي.<br>ـ زده کوونکي دې دوه دوه تنه له یو بل پوښتنه وکــړي او په ځوابونو کې دې د احمد شاه بابا د وخــت د شــاعرانو نومونه و اخلي.<br>ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د ورسپارل شوو پوښتنو په مطلب خبرې وکړي او په خپلو منځو کې دې مطلــب روښانه کړي.<br>ـ زده کوونکي دې د خپل استازي په واسطه نور له خپــل کار څخه خبرکړي.<br>ـ زده کوونکي دې په وار سره د فعالیتونو پوښــتونو تــه ځوابونه و وایي.<br>ـ زده کوونکي په خپلو ډلو کې خپل کارپــه مینــه ســرته رسوي.<br>ـ زده کوونکي کورنۍ دنده اخلي په کور کې وربانديې کار کوي چې بله ورځ یې په ټولګي کې ولولي. | ـ ښوونکی دې د نوي لوست سرلیک (احمد شاه بابا) پــه تخته ولیکي او د زده کوونکو پاملرنه دې ورته راواړوي.<br>ـ ښــوونکی دې لوســت پــه مناســب آوازو لــولي او زده کوونکي دې و څاري چې کتابونو ته پاملرنه وکړي.<br>ـ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې لوست په پټه خوله ولولي.<br>ـ دلوست ستونزمنې برخې دې ورتــه تــشریح کــړي. د وطنپالنې شعر دې بیا ولولي او د هر بیت په برخه کې دې د زده کوونکو له نظر نه وروسته خبرې وکړي او معنــا دې روښانه کړي .<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په دوه کسیزه توګه دې تــه وهڅوي چې د احمدشاه بابا د وخت د شاعرانو نومونه یو بل ته د ټولګي په مخکې ووایي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلوو وېشي یوې ډلې ته د احمدشاه بابا د هېوادنۍ مینې د شعر لومړي دوه بیتونه، دویمې ډلې ته منځني دوه بیتونه او دریمې ډلــې تــه دې وروستي دوه بیتونه و سپاري چې په خپلو منځو کې پــرې خبرې وکړي او مطلب یې روښانه کړي.<br>ـ د هرې ډلې یو غړی دې د ټولګي مخې ته ر واغواړي چې د خپلې ډلې د کار خرنګوالی او موخه نورو تــه وړانــدې کړي.<br>ـ د فعالیتونو هره پوښتنه دې په یوه زده کوونکي په وار سره ځواب کړي چې نور زده کوونکي پرې پوه شي.<br>ـ د یوې ډلې زده کوونکو ته دې د متن عام نومونه، بلــې ډلې ته دې د بې ترتیبو کلمو او جملو جوړونه او بلې ډلې ته دې د لغتونو معنا په مخامخ کلمو کې پیدا او په کتابچو کې د لیکلو دندې وسپاري.<br>ـښوونکی دې د احمد شاه بابا په اړه کو رنــۍ دنــده ورکړي چې په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې ووایي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

**لاندينی کلمې سره ترتیب او دوه جملې ترې جوړې کړئ.**

**ښوونځی، پرون، وم، تللی، زه، ته.**

**راکړ، ته، مور، ښوونکی درس.**

**(زه پرون ښوونځی ته تللی وم)، (ښوونکي مور ته درس راکړ)**

**د فعالیتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**

**دلغتونو معناګانې:**

**ډګر: میدان**

**راغ: د غره د لمنې ډاګونه**

**هوډمن: تصمیم نیوونکی**

**منځګړی: دریم ګړی**

**پرېکړه: فیصله**

**شخړه: جنګ**

**ښوونکي ته اضافي معلومات:**

**د افغانستان ستر واکمن ا علیحضرت احمد شاه بابا:**

د اوسني افغانستان بنسټ ایښودونکی احمد شاه بابا چې مور او پلار یې احمد خان باله، د سدوزیو د پښې د ابدالي محمد زمان خان دویم زوی د دولت خان لمسی چې په ۱۱۳۵هـــ . ق. کال چې له ۱۷۲۲م. کال سره سمون لري، په شاوخوا کې د زرغونې الکوزۍ بي بي له بطنه د افغانستان د هرات په ولایت کې زېږېدلی، دا هغه وخت دی چې د ده پلار د هرات والي و، د احمد خان له زوکړې نه څو میاشتې وروسته یې پلار محمد زمان خان وفات شو، خو د احمد شاه بابا پالنه د هغه مور زرغونې انا د هغه مشر ورور ذوالفقار خان ته پاتې شوه، خو احمد خان په داسې سختو شرایطو کې رالوی شو چـــې د تورو له خرپهار او د توپو او ټوپکو له درز هاریې بل څه نه لیدل، له دې سره سره احمدشاه بابا خپل هوډ له لاسه نـــه دی ورکړی او په کوچنیوالي کې یې مروجه علوم له دیني عالمانو څخه زده کړل.

احمد خان یو ورور درلوده چې له ده څخه مشر و چې ذوالفقار خان نومېده او د خویندو په اړه یې تاریخونو څـــه نـــه دي لیکلي، خو داسې ویلی شو چې داسې کورنۍ به ډېره کمه وي چې د وروڼو ترڅنګ خویندې ونه لري او احمد شاه بابا لـــه کوچني والي څخه د ښو اخلاقو خاوند او ملي دودونو او مذهبي لارښوونو ته ژمن او نیاومن انسان و.

احمد خان له کوچني والي څخه د تورو غښو سترګو، جګې پوزې، ورین تندي خاوند و، احمد خان څلور ماندینې درلـــودې چې لومړنۍ یې د هندوستان د شاهنشاه محمد شاه ګورګانې لور وه او شاه زیبه بیګم نومېده، دویمه یې د ننګرهار د بهسودو د سردار نومې سرې لور وه او د نورو، ودونو په هکله یې تاریخونو څه نه دي لیکلي. یوازې یادونه یې کړې ده، خو د واده کولو نېټه یې د یوې هم نه ده معلومه. داسې هم معلومه نه ده چې زامن یې له کومې څخه وه، مشر زوی یې تیمور شاه دویم زوی یې سلیمان، و. کله چې د نادر افشار له مړینې وروسته افغانان د شیر سرخ په زیارت کې سره راټول شول اولویه جرګه یې جوړه کړه په دې جرګه کې څو کسه د پاچاهۍ څوکۍ ته نومول شوي وو احمد شاه بابا د پاچاهۍ څوکۍ ته ولاړ هم نه و، خو د جرګه والو ترمنځ اختلاف موجود و. د جرګې د پرېکړې لپاره د استاد لایخوار نومي سرې زوی صابر شاه کابلی راپورته شو او د احمدشاه بابا په سر یې د غنمو وږې وتومبه او احمدشاه بابا د ټولو له خوا د پاچا په حیث وټاکل شو. پـــه دغه وخت کې احمد خان ۲۵ کلن ځوان و، احمد خان داسې پاچاهي وکړه چې د افغانستان پولې یې له اټکه تر ډهلي چې په غرب کې تر مشهده اوپه شمال کې تر مروې او د عربو تر سمندرګي پورې ورسولي. په پای کې د ناروغی لـــه املـــه ۱۱۸۶ هـــ .ق. کال د جون په لسمه د پنجشنبې په ورځ د غرمې پر وخت له دې فاني دنیا څخه سترګې پټې کـــړې او د کندهار په ښارکې د خرقې شریفې ترڅنګ خاورو ته ورسپارل شو. بیا د ده زوی د تیمور شاه په امر پرې یوه لویه او ښکلې ګنبده لرونکی ودانۍ جوړه شوه. احمد خان د اوسني افغانستان مؤسس ،عادل او دینداره اداره چې ، مدبر او زړور شخص و، رعیت یې هغه ته د بابا لقب ورکړی دی، د اشعارو یو ښکلی دیوان لري او دا دیوان د لومړي ځل لپاره په کابل کې په ۱۳۱۹ هـــ . ش.کال کې چاپ شو.

**ماخذونه:**

د لوی احمد شاه بابا یاد، (د احمدشاه بابا د سیمینار د مقالو مجموعه)، خپرونکی د افغانستان د علومو اکـــاډمۍ د پـــښتو څېړنو نړیوال مرکز، ترتیب کوونکی، محقق سید محی الدین هاشمي.

احمد شاه بابا افغان، د ستر احمد شاه بابا د اتل ژوند تاریخ.

احمد شاهي تاریخ.

د افغانستان مختصر تاریخ، عبدالحی حبیبي.

د احمد شاه بابا دیوان.

# اته وېشتم لوست

**د تدریس وخت: درې درسي ساعتونه**

| ګڼه | د مطلبونو سرلیکونه: | د مطلبونو شرحه |
|---|---|---|
| ۱ | **د لوست موضوع:** | خبرې اترې (محاوره) |
| ۲ | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي، او ذهنیتي موخې:** | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ د خبرو اترو ترتیب به زده کړي.<br>ـ د خبرو اترو په کولو سره به د خبرو کولو وړتیا پیدا کړي.<br>ـ په ورځني ژوند کې به د خبرو اترو په ارزښت پوه او ورځخه به ســـم کـــار واخلي.<br>ـ د خبرو اترو متن به سم ولوستلی، ولیکلی او نورو ته بیان کړای شي. |
| ۳ | **د تدریس لارې:** | یو کسیزه، دوه کسیزه او ډله ییزه، فعالیت، سوال او ځواب، لوستل او لیکل. |
| ۴ | **د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي:** | د خبرو اترو د وخت انځور، د کلمو کارتونه، کتاب، تخته، تخته پاک، تباشیر، قلم، کتابچه. |
| ۵ | **د ارزولو لارې او وسیلې:** | شفاهي، لیکني، پوښتنې، څارنه او د ښوونکي د یادښت کتابچه |
| ۶ | **د زده کړې او تدریس فعالیتونه:** | ټولګي ته له ننوتلو سره سم سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د ناسوب زده کوونکو پوښتنه او د کورنۍ دندې له کتلو وروسته کورنۍ دنده پر تخته لیکل چې نور زده کوونکي خپلې دندې ورسره پرتله او اصلاح کړي. |
| ۷ | **د انګېزې رامنځته کول:** | یو مطلب د څه شي په واسطه ښکاره او روښانه لی شو؟<br>ـ خبرې اترې څنګه پیل کړو؟<br>ـ له خبرو اترو څخه مطلب څه دی؟ |

| د ښوونکي فعاليتونه: | د زده کوونکو فعاليتونه: |
| --- | --- |
| _ د نوي لوست سرليک دې په تختې و ليکي او د زده کوونکو پاملرنه دې ورته راواړوي، لومړی مرکه دې ولولي بيا دې دويمه مرکه په مناسب آوازو لولي او ورپسې دې دريمه مرکه و لولي او په لوستلو کې دې زده کوونکي وڅاري. | _ د نوي لوست سرليک (محاوره) دې په کتابو کې پيدا او زده کوونکې دې ورته متوجه شي.<br>_ زده کوونکي دې په لوست کې هرې مرکې ته پام وکړي او په مطلب دې ځان و پوهوي. |
| _ زده کوونکو ته دې سپارښتنه وکړي چې درې واړه مرکې په چوپتيا سره ولولي. | _ زده کوونکي دې دربواړه خبرې اترې په پټه خوله ولولي او د ستونزمنو کلمو پوښتنه دې وکړي. |
| _ ټولګی دې په درې ډلو ووېشي، لومړۍ ډلې ته د لومړۍ مرکې، دويمې ته د دويمې مرکې او دريمې ته دې د دريمې مرکې خبرې اترې سپارې چې په خپلو ډلو کې يې وکاروي.؛ | _ زده کوونکي دې درې ډلې جوړې کړي او هره ډله دې خپله ورسپارل شوې مرکه په خپلو منځو کې ترسره کړي او د ستونزو پوښتنه دې وکړي. |
| _ د ستونزو له حل نه دې وروسته له هرې ډلې څخه دوه دوه تنه د ټولګي مخ ته راوغواړي چې خپله مرکه په خبرو اترو کې ترسره کړي. | _ له هرې ډلې دې دوه دوه تنه زده کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او خبرې اترې دې و کړي. |
| _ زده کوونکو ته دې دنده ورکړي چې په لوست کې هر يو پنځه پنځه نومځري پيدا او په کتابچو کې دې وليکي. | _ زده کوونکي دې دنده ترسره کړي. او نومځری دې پيدا کړي. |
| _ زده کوونکو ته دې څلورم فعاليت ترسره کول و سپاري. | _ زده کوونکي له لارښوونې سره سم کار کوي. او څلورم فعاليت دې حل کړي. |
| _ په پنځم فعاليت کې لغتونه دې معنا او په جملو کې وکاروي. | _ پنځم فعاليت دې عملي کړي. او لغتونه دې په جملو کې وکاروي. |
| _ زده کوونکي دې د زه، هغه، تاسې، موږ دوی، دا، دې نومځری په نښه او په خپلو کتابچو کې وليکي. | _ زده کوونکي دې په کورنۍ دنده باندې ځان و پوهوي چې بله ورځ يې ترسره او د ټولګي په مخکې يې ولولي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول:**

لغتونه:

سيمه: ځای، منطقه

موندل: پيدا کول

توکي: اجزاء

موسم: وخت، فصل

نومځري: ضميرونه

زه: شخصي ضمير د مفرد متکلم لپاره

هغه: اشاري ضمير

تاسې: شخصي ضمير د جمع مخاطب لپاره

موږ: شخصي ضمير جمع متکلم لپاره

| |
|---|
| **دوی: شخصي ضمير د جمع غائب لپاره**<br>**دا: اشاری ضمير د مفرد مؤنث لپاره**<br>**دې: شخصي ضمير د مفرد مؤنث لپاره.**<br>**د فعاليتونو په اړه معلومات او د پوښتنو ځوابونه:**<br>**د ضميرونو پنځه ډولونه:**<br>**۱ـ شخصي ضميرونه**<br>**۲ـ ملکي ضميرونه**<br>**۳ـ استفهامي ضميرونه**<br>**۴ـ ربطي ضميرونه**<br>**۵ـ اشاري ضميرونه** |
| **اضافي معلومات:**<br>**کله چې انسان غواړي له خپلې مورنۍ ژبې سربېره نورې ژبې هم زده کړي، له هرڅه نه مخکې ورته په هغه ژبه کې محاوره ياخبرې اترې پکاردي، ځکه چې دخبرو اترو پواسط هرڅوک خپله موخه نوروته څرګند وي اوهغوی پرې پوهولی شي. لــه دې امله مور اودښوونځي زده کوونکو ته ښايي چې په ورځيني ژوند کې له خبرو اترو څخه کارواخلواوځان خپلې موخې ته ورسو اونورپه خپل ذهني تصويروپوهوو**<br>**په خبرو اتروانسان نه يوازې داچې يوبل پوهوي، بلکې دکلمو سم تلفظ اواداکول هم پکې زده کيږي اودژبې دزده کـــړې څومهارتونه پکې ترسره کيږي، ماشومان چې نوي په خبرو پيل کوي، هغوی هم لومړی له موراوپلارڅخه خبرې اوري اوبيا هماغه خبرې وايي ،که دکلمو سم تلفظ يې اوريدلی وي، سم يې اداکوي اوپه دې توګه دلوياتو اومشرانو دخبـــرو ځـــواب ورکوي اوله هغوی سره خبرې اترې کوي .**<br>**دخبرو اترو اغيزنه يوازې په ماشومانو کې، بلکې په هغو لويانو کې هم زيات څرګنددی چې هغوی يوه ژبه نوې زده کوي له دې امله زده کوونکو ته ښايي چې نه يوازې په ټولګي کې، بلکې په کور،کوڅه ،بازارکې هم له خپلو خپلوانو اودوستانو سره په خبرو اترو کې خپله، موخه ترلاسه کړي.** |